# باچا خان

# عهد ساز شخصیت

ډاکټر محمد همایون هما





بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمُ



د کتاب نوم: باچا خان عهد ساز شخصیت
مؤلف: ډاکټر محمد همایون هما
مشاورت: پروفیسر میا عنوان الدین کاکا خېل
اهتمام: عظمت هما
خوروونکې: ډاکټر شفقت هما
مرستیال: زاهد خان
کمپوزنګ سلېمان کامل(03005729287)
چاپ : اول (جنوري ۲۰۱۳ء)
شمېر: ۱۰۰۰ (یو زر)
بیعه: ۲۰۰ روپۍ
درك:
اداره فکر و ادب هسکه مېنه شېخ ملتون ، مردان
نعیم مېډیکل هال ، بغداده مردان

# تړون

دباچا خان د هغه ټولو ملګرو په نوم چې دازادۍ د
جنګ په هر سنګر ئې ورسره ملاتړ کړے دے.

هما





# سوغات

قدرمند ډاکټر فضل رحيم مروت
ته په ډېر درناوي دا کتاب سوغات
کوم چې د باچا خان د وېژن خپرونه
ئې په علمي انداز کښې کړې ده.

هما

# تشكر

د خپلو بچو عظمت هما ، حرمت هما او د
ډاكټر شفقت هما شكر ګزار يم چې د دوي
په لګښت دا كتاب چاپ شۀ

هما





# ترتيب

# خپلې خبرې

تېر کال (۲۰۱۲ء) د جنورۍ په وړومبو ورځو کښې ما د ګران
ډاکټر سعید انور چې په عبدالولي خان یونیورسټۍ کښې د
فېکلټي اف سائنسز ډین دے، ته د باچا خان د کلیزې
دستورۍ په موقع د یو ادبي سیمینار نمانځلو خبره وکړه.
خدا ے دې بختور کړي ، هغه زما خبره سمدستي ومنله خو د
نېټې ټاکلو فېصله د یونیورسټۍ وائس چانسلر قدرمند
ډاکټر احسان علی ته ځنډ کړې شوه. هغه په دغه ورځو کښې د
ملك نه بهر وۀ. کله چې راستون شۀ نو ما هغۀ ته دغه تجویز
وړاندې کړۀ او ورته مې ووئیل چې په دستوره کښې به د باچا
خان ادبي او تعلیمي خدماتو باندې خبرې کېږي . د هغۀ
سیاسي جدوجهد خو هر چا ته څرګند دے خو د ژوند په دغه
اړخ ئې د کار ښۀ ډېر زیات ګنجائش موجود دے. دا تحقیق
به کۀ هر څو څۀ نوي انکشافات نۀ وي خو په وړومبي ځل به په
دغه موضوع یوه کوټلې هڅه ضرور وي. ښاغلي ډاکټر زما
دتجویز سره اتفاق وکړۀ او بیا مونږ په صلاح د دستورۍ د پاره
د دویمې فرورۍ ۲۰۱۲ء ورځ غوره کړه. ما د وائس چانسلر د
راکړي اختیار تر مخه د باچا خان په تعلیمي او ادبي ډګر د
خدماتو په موضوع یو څو پوهانو ته د لیك باقاعده خواست





وکړۀ ، هغوی ټولو ښه په مینه مقالې ولیکلې او په وخت ئې
راورسولې . د یونیورسټۍ ځنې کارنده ملګرو د دستورۍ
انتظامي امورو کښې په ډېره مینه ، توجه او جذبې سره برخه
واخسته خو د دستورۍ د پاره د ټاکلې شوې نېټې نه یوه ورځ
وړاندې داسې مسئلې سېلمه شوې چې بیا د دغې علمي او
ادبي سیمینار انعقاد ممکن نۀ وۀ او مونږ ډېر په مات زړۀ د
دستورۍ په منسوخ کولو مجبور شو . دستورۍ د پاره چې
پوهانو زما په خواست کوم درانۀ علمي لیکونه راکړي وو، کۀ
هر څو د دستورۍ ناڅاپي منسوخ کولو په وجه په هغه وخت
مینه والو ته وړاندې نۀ کړې شو خو د هغې خوندي کول زما په
نظر کښې مناسب نۀ وو نو ځکه ما دغه لیکونه په کتابي
صورت کښې د چاپ کولو فېصله وکړه . کار بل کال ته
وځنډېدۀ چې وجه ئې زما خپله نا اوزګارتیا وه خو زۀ په دې
خبره ډېر خوشحاله یم چې دغه ټول لیکونه اوس د باچا خان په
پینځویشتمه کلیزه دستوره "باچا خان عهد ساز شخصیت"
په نوم چاپ کېږي . په ذکر شوي دستوره کښې په ټاکلې شویو
موضوعاتو وېنا د پاره درې ملګرو ته خواست شوے وۀ خو په
کتاب کښې مونږ د باچا خان د ژوند په حلقه ځنې نور لیکونه
هم شامل کړي دي چې د کتاب ارزښت پرې زیات شوے دے.
د باچا خان ژوند " د میاشت او کال په ائینه کښې" د ډاکټر
زبېر حسرت راغونډ کړي معلومات دي چې په کښې د دغې

ستر ملي اتل او قامي مبارز د ژوند واقعات په تاريخي ترتيب وړاندې کړې شوې دي ، ليك د باچا خان د ژوند په مختلفو اړخونو تحقيق د پاره د اهميت وړ دے.

کاش چې هغه بيا هم راهنما وے، دا د قلندر مومند ليك دے چې پښتون کښې چاپ دے خو مونږ ئې دلته د ډاکټر زبېر حسرت په شکريه بيا چاپ کوو. په دې ليك کښې د باچا خان د ملي جدوجهد بيان په ډېر اثري ډول زمونږ مخې ته راځي.

پروفېسر ميا عنوان الدين کاکا خېل په اختصار خو د جامعيت د ټولو خوبيو سره د باچا خان په کارنامو خبرې کړې دي. د م. ر. شفق ليك، طنز او مزاح د باچا په خبرو کښې د باچا خان د امروزه ژوند ائينه ده چې په کښې د هغهٔ د شخصيت د مجلسي ژوند عکسونه په وړومبي ځل لوستونکيو ته وړاندې کړې شوي دي. دغې خبرو د شفق د ليك خوږلت/ خوند نور زيات کړے دے.

د باچا خان تحريك او پښتو ادب د خوارې کښې محقق مياوکيل شاه فقير خېل ليك دے، ښاغلي ليکونکي په خپل جامع مضمون کښې په هغه ټولو عواملو د کوټلي حوالو سره ښهٔ په تفصيل بحث کړے دے چې د خدايي خدمتگار د عروج په وخت کښې ئې پښتو ادب شتهٔ من کړے او په وړاندې بوتلے وهٔ، د نظر لاندې ليك کښې د باچا خان په تعليمي خدماتو هم رڼا غورځولې شوې ده چې ډېر زيات ارزښت لري.





ډاکټر زبېر حسرت د باچاخان بابا خبرې، کښې د باچاخان د ليکونو نه په ډېره خوارۍ هغه برخې راغونډې کړې دي کومې چې زمونږ د دغه لوړ سياسي او سماجي شخصيت د نظرياتو څرګندونه کوي ، د هغهٔ سياسي وژن ترې برېښي او دا ښايي چې باچاخان خپل سياسي جدوجهد او د قام د ښېګړې کارونه په کومو بنيادونو روان کړي وو.

د باچاخان متحرك ژوند ، د هغهٔ د خودنوشت په رڼا کښې ، د عظمت هما يو معلوماتي ليك دے. عظمت هما لکه څنګه چې پخپله ليکلي دي ، د خودنوشت يو مقصد د يو اتل د ټول ژوند د تعميري کوششونو بيان وي نو ځکه ليکونکي د باچاخان د خودنوشت "زما ژوند او جدوجهد" زړهٔ پورې جائزه اخستې ده. په دغه کتاب کښې کهٔ يو بله د ملك د ازادۍ اماني تاريخ خوندي دے نو ورسره د هغې شواخون او کړان هم تفصيلات درج دي چې زمونږ ملي اتل او د هغهٔ ملګرو په دغه لاره کښې ګاللي وو. د نظر لاندې مضمون کښې د خودنوشت په دغې ټولو اړخونو په اجمالي ډول څرګندونه شوې ده.

کتاب ستاسو د وړاندې دے. زهٔ کهٔ باچاخان عهدساز شخصيت ته د خپل نوعيت وړومبۍ هڅه ووايم نو بې ځايه به نهٔ وي. دا يو څرګند حقيقت دے او ځوك هم پرې سترګې نهٔ شي پټولې چې د ملك د ازادۍ په تحريك کښې د باچا خان برخه، شواخون او قربانۍ يو بې مثله مثال دے ، يو ناوياته

تاریخ دے او زهٔ د دغې تاریخ یو اړخ د هغې ټولو ملګرو د تشکر سره تاریخ ته سپارم چې ماته ئې د دې کتاب د پاره خپل درانهٔ لیکونه پېرزو کړي دي او د کتاب په ترتیب او تدوین کښې ئې زما مرسته کړې ده ـ زهٔ د عبدالولي خان یونیورسټۍ مردان د نهٔ ستړي کېدونکي وائس چانسلر ډاکټر احسان علی په خصوصي توګه شکریه ادا کوم ، هغهٔ کهٔ چرې تېر کال د باچاخان د کلیزې دستورې د نمانځلو د پاره ''ښه'' نهٔ وې کړې نو د دې کتاب ترتیب به ممکن نهٔ وهٔ ځکه چې دغه ټول لیکونه د هغه ''ښه'' په نتیجه کښې لیکلي شوي دي ـ دغه شان د ډاکټر سعید انور شکریه هم په ما واجب ده ځکه چې د دستورې په حقله ئې زما د تجویز په عملي کولو کښې مرسته کړې وه ـ

*ډاکټر محمد همایون هما*

هسکه مېنه شېخ ملتون مردان

۳مه جنوري ۲۰۱۳ء





# د باچا خان ژوند

## (د میاشت او کال په ائینه کښې)

| | |
|---|---|
| 1889-90 | خان عبدالغفار خان په اتمانزو چارسده کښې پېدا شهٔ |
| 1896 | جومات کښې ئې د قران کریم زده کړه شروع کړه |
| 1898 | په میونیسپل روډ هایي سکول پېښور کښې داخل کړے شهٔ |
| 1901 | په اېډورډز مشن هایي سکول کوهاټي ګېټ پېښور کښې داخل کړے شهٔ E F E WIGRAM هغه وخت د دې سکول هېډ ماسټر وهٔ |
| 1906 | د ارمي د کمېشن اخستلو نه پس ئې انکار وکړهٔ |
| 1908 | اسلامي سکول علی ګړه ته لاړهٔ |
| 1909 | انګلستان کښې ئې د تعلیم کولو فېصله وکړه |
| 1910 | په خپل کلي اتمانزو کښې ئې یو سکول د مولانا عبدالعزیز په ملګرتیا کښې شروع کړهٔ |
| 1912 | د رځړو د یار محمد خان د لور سره ئې وادهٔ وشهٔ |
| 1912 | د حاجی صاحب د ترونګزو په اصلاحي تحریک کښې شامل شهٔ |
| 1913 | د مسلم لیګ یو اجلاس له اګرې ته لاړهٔ |

1913 مشر ځوے عبدالغني خان پيدا شۀ

1914 د مولوي فضل ربي او مولوي فضل محمود سره د شيخ الهند محمود الحسن په بلنه ديوبند ته لاړۀ

1914 د چېلي اېستو د پاره باجوړ ته لاړۀ

1915 انګرېزانو د اتمانزو په ازاد سکول پابندي ولګوله

1915 دوېم ځوے خان عبدالولی خان پېدا شۀ

1918 کور والائي وفات شوه

1919 د رولټ اېکټ خلاف ئې د سياسي ژوند اغاز وکړۀ

1919 ګرفتار شۀ او د دېرشو زرو په ضمانت پرېښودې شۀ

1919 دوېم وادۀ ئې وکړۀ

1920 خلافت کانفرنس کښې شرکت د پاره دهلي ته لاړۀ

1920 افغانستان ته په هجرت لاړۀ

1920 صوبايي خلافت کميټي جوړه شوه او د هغې صدر منتخب کړے شۀ

1920 د خلافت تحريك د پاره ئې د چندې راټولولو مهم شروع کړۀ. دا رقم به په هغه مدرسو لګولې



باچاخان عهد ساز شخصيت

شۀ چې کومې چې حکومت په ۱۹۱۴ کښې بندې کړې وې

1921 تحريك اصلاح الافاغنه جوړ کړۀ او د هغې ورومبے صدر ئې عبدالاکبر خان او د پښتو ژبې ورومبے ډرامه نګار ميا محمد شاه د هغې سېکرټري جنرل مقرر او محمد اکبر خان خادم د شاعر په حېث مقرر شۀ

1921 په ۱۷م دسمبر ۴۰ اېف سي ار د لاندې ونيولے شۀ او درې کاله بامشقته قېد کړلے شۀ. د دۀ خلاف الزامونه دا وو چې د هجرت په تحريك کښې لويه برخه اخستې وه او دوباره ئې اتمانزو کښې ازاد سکول شروع کړے وۀ

1921 حکومت د هغۀ د مشر ورور ډاکټر خان صاحب د نورو پښتنو مشرانو په ذريعه په جېل کښې هغۀ ته وې چې مونږ تا ته د ازاد سکولونو چلولو اجازت درکوو خو د ملك نه به بهر دورې نۀ کوې .

1922 هغۀ په جېل کښې وۀ چې د دوېم جنګ تبر نه ئې درېم ځوے عبدالعلی خان پېدا شۀ چې په مشهور ماهرِ تعليم دے او د پېښور يونيورسټۍ او ګومل يونيورسټۍ وائس

چانسلر پاتې شوے دے

1923 چې کله د ډېره غازي خان په جېل کښې وهٔ نو مور بي بي ئې وفات شوه

1923 د هغهٔ مشر ورور ډاکټر خان صاحب د لندن د سېنټ تهامس هسپتال نه ډاکټري وکړه او هلته ئې د يوې انګرېزې سره په دوېم ځل وادهٔ وکړهٔ. د هغې نه د ډاکټر صاحب يو ځوے جان خان او يوه لور مريم وه . مريم بيا يو سکهـ سره وادهٔ وکړهٔ

1924 د جېل نه رها شهٔ

1924 د جېل نه په واپس راتلو ، ورته د اتمانزو يوې جرګې د فخر افغان خطاب ورکړهٔ

1924 په صوبه کښې د جوړو شويو ازادو سکولونو چې خدايي خدمتګارانو چلولو د هغې په دوره روان شهٔ

1926 د ال انډيا کانګرس د تحريك خلافت په حقله په کلکته کښې کېدونکي اجلاس له لاړهٔ

1926 د باچا خان بابا پلار بهرام خان وفات شه

1926 د خپل ټبر او مشرې خور سره حج له لاړه

1926 د حج ادا کولو نه پس سره د خپل کور واله هلته ايسار شهٔ او د سعودي عرب او فلسطين





مختلف ځايونه ئې وکتل ، هم هلته ئې کور والا په حق ورسېده او په بيت المقدس کښې دفن کړې شوه

1928 چې کله واپس راغلو نو په مئي ۱۹۲۸ء کښې ئې يوه رساله د ''پښتون'' په نوم جاري کړه

1928 باچا خان د انجمن نوجوانان صوبه سرحد په نامه يو تنظيم جوړ کړهٔ

1928 د ملګرو سره د کلکتې ته د خلافت کانفرنس له لاړهٔ هلته ئې د مولانا ظفر على خان ، علامه اقبال او على بردارانو سره د سرحد او افغانستان په حقله خبرې اترې وشوې

1928 په ۱۱م نومبر د کانګرس د صوبايي کمېټۍ صدر وټاکلے شهٔ

1929 د کانګرس سالانه اجلاس کښې د شرکت د پاره لاهور ته لاړهٔ ، چې په هغې کښې د ټول هندوستان د ازادولو غوښتنه وشوه

1929 د کانګرس اجلاس له لکهنو ته لاړهٔ چې په ورومبي ځل ئې مهاتما ګاندي او جواهر لعل نهرو سره ليدل کتل وشو

1929 په افغانستان ئې د بچه سقه خلاف د نادر خان فتحه د نورو خدايي خدمتګارانو سره ونمانځله

1929 د ټول هندوستان دوره ئې په دې غرض وکړه چې د افغانستان د پښتنو په حقله نورو خلقو مرسته نوره هم تېزه او تنده کړي

1929 د نوجوانان صوبه سرحد تنظيم له ئې د يو غېر سياسي تنظيم "خدايي خدمتګار تحريك" نوم ورکړۀ چې وروستو دا تنظيم د پېرنګي د ظلمونو له وجې يو سياسي تحريك شۀ. بابا په خپله د دې تنظيم سالار اعظم وۀ

1929 کلي په کلي وګرځېدۀ چې خلقو کښې خدايي خدمتګار تحريك معرفي کړي

1929 د خلافت تحريك د کانګرس سره د اختلاف راتلو له وجې ئې د خلافت کمېټۍ د صوبايي صدارت نه استعفیٰ ورکړه

1929 په اتلسم او نولسم اپرېل په اتمانزو کښې د خدايي خدمتګار تحريك يوه غونډه وکړه چې په کښې دوه سوه سرخپوش شريك شو

1929 په ستمبر کښې ئې د خدايي خدمتګار سياسي څانګه د زلمو جرګه په نوم پرانسته چې وروستو بيا د هغې نوم افغان جرګه کېښودې شوه

1930 په درويشتم اپرېل ئې په اتمانزو کښې يوه جسله وکړه او خلقو ته ئې د حکومت خلاف په سول





نافرمانۍ کښې د شرېکېدو خواست وکړۀ

1930 په درويشتم اپرېل سره د ملګرو پوليس په نحقۍ کښې د ايف سي ار لاندې ګرفتار کړۀ او درې کاله قېد کړے شۀ

1930 مياشتنۍ پښتون مجله بنده کړې شوه

1930 د هغۀ د ګرفتارۍ خلاف په درويشتم اپرېل د قصه خوانۍ دردناکه پېښه وشوه

1930 د مئي په دوېم تاريخ د پښتونخوا خلقو د حکومت خلاف هړتال وکړۀ

1930 د مئي په ديارلسم تاريخ حکومت اتمانزو کلے محاصره کړۀ چې خلق په دې مجبور کړي چې هغوي خدايي خدمتګارۍ پرېږدي

1930 په اتويشتمه مئي د ټکر پېښه رامينځ ته شوه

د قېد دوران کښې باچا خان کانګرس سره خبره وکړه چې کۀ هغوي زمونږ امداد کوي نو هغوي به خپل تحريك په کانګرس کښې مدغم کړي

1931 د يو کال قېد نه پس د ګاندهي جي ارون پېکټ تر مخه د ډېره غازي خان جېل نه رها کړے شۀ

1931 په مارچ کښې د کانګرس په کراچۍ کښې کېدونکي اجلاس له په وړومبي ځل د هغوي په بلنه د سلو خدايي خدمتګارو سره شريك شۀ

1931 په اپرېل کښې دهلي ته د کانګرس اجلاس له لاړۀ

1931 په مئي کښې يو ځل بيا "پښتون مجله" د عبدالخالق خليق په ادارت کښې شروع شوه

1931 په نهم جون د ګاندهي جي سره د کانګرس د ورکنګ کمېټۍ اجلاس له لاړۀ

1931 په جولايي کښې د ګاندهي جي ځوے دېوداس ګاندهي د پښتونخوا د حالاتو معلومولو د پاره پېښور ته راغے او په اتمانزو کښې د بابا سره دېره شۀ

1931 حکومت د خدايي خدمتګار تحريك د اثر رسوخ ختمولو په غرض خاکسار تحريك شروع کړۀ او د پېښور ګورنمنټ هايي سکول هېډماسټر عنايت الله مشرقي ئې د هغې ورومبے صدر مقرر کړۀ

1931 په دېرشمه جولايۍ د صوبې چيف کمشنر سر سټيورټ پيئرز د باچا خان سره انټرويو وکړه

1931 په ديارلسم اګست باچا خان بمبۍ ته د ال انډيا کانګرس اجلاس له لاړۀ ، په دغه اجلاس کښې فېصله وشوه چې په صوبه سرحد کښې دې يوه نوې کمېټي د سرحد کانګرس کمېټۍ په نوم يا





د سرحدي جرګه په نامه جوړه شي

1931 په پنځويشتم اګست د ګاندهي جي او جواهر لعل نهرو په ملګرتيا کښې د وائسرائے سره متينګ له شملې ته لاړۀ

1931 په څليرشتم دسمبر په تحريك پابندي ولګېده او په خپل کور کښې ګرفتار شۀ او د درې کاله قېد بامشقت سزا ورکړې شوه

1932 په دسمبر کښې بيا يو ځل پښتون مجله د حکومت د جبر ښکار شوه او بندېز پرې ولګېدۀ

1934 په اوولسم اګست ئې د ګاندهي جي د روژې نيولو په وجه هغۀ سره د همدردۍ کولو د پاره يوه هفته روژې ونيولې

1934 په وويشتم اګست د درې کاله قېد تېرولو نه پس رها شۀ خو خپلې صوبې ته په تللو ئې پابندي ولګولې شوه او پنجاب کښې نظر بند کړے شۀ

1934 په دېرشم ستمبر ئې په کلکته کښې عوامو ته د يوې جلسې په دوران کښې په هندو مسلم اتحاد باندې خطاب وکړۀ

1934 په بمبۍ کښې ئې يو اجلاس ته خطاب وکړۀ د هغې په وجه حکومت په يو پي واردها کښې په ووم دسمبر ګرفتار کړۀ

| | |
|---|---|
| 1936 | په اګست کښې رها کړے شۀ خو لا په خپله صوبه او پنجاب تللو ئې پابندي وه ، د دې وجې نه دوباره ورادها ته لاړۀ او ګاندهي جي سره دېره شۀ |
| 1937 | په فروری کښې عام انتخابات وشو چې پکښې خدايي خدمتګارو په پنځوسو کښې په نولسو سيټونو کاميابي حاصله کړه |
| 1937 | په مارچ کښې د ګاندهي جي سره ال انډيا کانګرس اجلاس له دهلي ته لاړۀ |
| 1937 | په سرحد او پنجاب تللو چې کومه پابندي پرې لګېدلې وه هغه په شپږويشتم اګست پورته کړې شوه |
| 1937 | شپږ کاله بهر تېرولو نه پس د ګاندهي جي سره خپلې صوبې ته راغلو او خان عبدالولي خان په اتمانزو کښې د دواړو استقبال وکړۀ |
| 1937 | سرحد ته د راتلو نه پس ئې فېصله وکړه چې د ټولې صوبې او بلوچستان دوره وکړي او خدايي خدمتګار تحريك فعال کړي |
| 1938 | په ورومبۍ مئي ګاندهي جي د صوبه سرحد د اتو ورځو په دوره راغے |
| 1938 | په مئي کښې باچا خان بابا بيا پښتون مجله |





| | |
|---|---|
| | شروع کړه اوس مياشتنۍ نۀ وه بلکې لس ورځې پس به چاپ کېدله او ايډيټر ئې عبدالخالق خليق صاحب وۀ |
| 1938 | د ګاندهي جي سره د ال انډيا کانګرس د ورکنګ کمېټۍ اجلاس له کلکتې ته روان شۀ |
| 1938 | ګاندهي جي د صوبه سرحد د يوې مياشتې په دوره د تللو پروګرام جوړ کړۀ |
| 1940 | په مارچ کښې باچا خان د ال انډيا کانګرس سالانه اجلاس له رام ګړه بهار ته روان شۀ |
| 1940 | باچا خان بابا د کانګرس ورکنګ کمېټۍ اجلاس کښې شرکت وکړۀ ، په دې اجلاس کښې په صوبه سرحد کښې د سول نافرمانۍ د تحريك شروع کولو کار ورته وسپارلے شۀ |
| 1940 | يو وار بيا پښتون رساله بنده کړې شوه |
| 1941 | په دريشتم دسمبر باردولي ته د ورکنګ کمېټۍ اجلاس له لاړۀ |
| 1941 | باچا خان بابا په ټوله پښتونخوا کښې د خدايي خدمتګارو د پاره ټرېننګ کيمپونه پرانستل |
| 1942 | ګاندهي جي او باچا خان بابا دواړو د ال انډيا کانګرس نه استعفیٰ ورکړه ځکه چې هغوي حکومت سره په دويم عالمي جنګ کښې د |

تعاون اعلان وکړ

1942 په جولایۍ کښې باچا خان بابا د خدایي خدمتګارو د پاره د پښور نه څوارلس میله لرې په سردریاب کښې یو مرکزي دفتر د مرکز اعلیٰ خدایي خدمتګاران په نامه جوړ کړ

1942 په وویشتم اکتوبر باچا خان سره د نورو خدایي خدمتګارانو د چارسدې نه مردان د تللو په وخت میروس ډیرۍ کښې د" هندوستان پرېږدۍ تحریك" په وجه د پولیس نه وهل وخوړل چې په هغې کښې دوه پُښتۍ ماتې شوې او هرې پور جېل ته بوتللے شو او دوه کاله قېد کړے شو

1945 ډاکټر خان صاحب د لارډ کننګم په دعوت په صوبه سرحد کښې خپل وزارت جوړ کړ

1945 په وولسم مارچ د لارډ ویول د اعلان تر مخه د نورو قېدیانو سره رها کړے شو

1945 باچا خان بابا او ګاندهي جي د کانګرس او د هغې د ورکنګ کمېټۍ نه د وتلو نه پس په بمبۍ کښې بیا په کانګرس کښې شامل شو

1945 په مئي کښې باچا خان بابا بیا د پښتون اجرا وکړه خو دا ځل د هفته وار اخبار په شکل کښې وه





1945 په پنځویشتم جون باچا خان بابا او ډاکټر خان صاحب په شمله کښې د ویول په کانفرنس کښې د کانګرس د نمائندګانو په حېثیت شریك شو

1946 باچا خان بابا د انډیا د مرکزي پارلېماني اسمبلۍ ممبر وټاکلے شو

1946 د حکومتي مسئلو باندې د خبرو اترو کولو د پاره باچا خان بابا دهلي ته د ګاندهي جي ملاقات له لاړ

1947 په دوویشتم اپرېل باچا خان بابا ورومبي اېشین رېلېشن کانفرنس ته خطاب وکړ

1947 په مئي کښې د پښتون زلمے په نوم یو تنظیم باچا خان بابا په خپله رهنمایۍ کښې جوړ کړ او د هغې مشري ئې خپل مشر ځوي عبدالغني خان ته وسپارله

1947 په یوویشتم جون باچا خان د پښتونستان مطالبه په بنو کښې وړاندې کړه چې وروستو د بنو قرارداد په نوم مشهوره شوه

1947 باچا خان بابا د ګاندهي جي ، لارډ ماونټ بېټن او محمد علی جناح سره په یو اجلاس کښې شرکت وکړ ، کانګرس ته په صوبه سرحد کښې د ریفرېنډم کولو کار وسپارلے شو خو باچا خان

بابا د دې نه بائیکاټ وکړۀ

1947 د پاکستان جوړېدو نه پس په دوویشتم اګست حکومت د ډاکټر خان صاحب وزارت مات کړۀ او د هغۀ په ځائے ئې عبدالقیوم خان راوستۀ

1947 په دوېم او درېم ستمبر باچا خان په پاکستان کښې دننه د یو ریاست پښتونستان مطالبه وکړه

1948 باچا خان بابا د قامي اسمبلۍ اجلاس کښې د شرکت کولو د پاره کراچۍ ته لاړۀ

1948 په درېمه فرورۍ باچا خان د وړومبي پارلیماني اسمبلۍ د غړي په حېثیت حلف اوچت کړۀ

1948 په پینځم مارچ ئې قامي اسمبلۍ ته په اردو کښې خطاب وکړۀ

1948 د مارچ په میاشت کښې باچا خان د پیپلز پارټۍ په نوم یوه پارټي جوړه کړه چې عبدالصمد خان اچکزے ، عبدالمجید سندهي، جي ایم سید، شېخ هشام الدین دوي هم ورسره ملګري وو. باچا خان متفقه توګه باندې د دې صدر منتخب شۀ

1948 د اپرېل په منځومانه کښې جناح صاحب صوبه سرحد ته راغے ، باچا خان بابا ئې هرکلے وکړۀ





1948 باچا خان بابا ووې چې زۀ خپل تنظیم مسلم لیګ سره شاملول غواړم خو مسلم لیګ دې ته تیار نۀ شۀ

1948 په دیارلسمه مئي باچا خان بابا د خدایي خدمتګار تنظیم په ټول ملك کښې د خورولو اعلان وکړۀ او وې وئیل چې دا خدایي خدمتګار به د نوې جوړې شوې پیپلز پارټۍ رضا کاره ډله وي

1948 په مئي کښې باچا خان بابا خپلې صوبې ته راغلو او په ټوله صوبه کښې ئې د حکومت خلاف تحریك شروع کړۀ

1948 د شمالي علاقو د دورو نه پس باچا خان بابا اراده وکړه چې اوس سوېلي علاقو ته لاړ شي خو د دې نه اګاهو په پینځلسم جون ګرفتار کړے شۀ او درې کاله قېد کړے شۀ

1948 په څلورمه جولایي د سرحد حکومت د یو اړډیننس په ذریعه خدایي خدمتګار تحریك خلاف قانون وګرځولو

1948 په دولسم اګست هر کله چې باچا خان بابا جېل کښې وۀ د بابړې دردناکه واقعه پېښه شوه

1948 د ستمبر په میاشت کښې خدایي خدمتګار

تحريك خلاف قانون وګرځولے شۀ او د سردرياب مرکز وران کړے شۀ

1950 د باچا خان بابا درې کاله قيد ختم شه خو ځله د بنګال ريګوليشن ۱۸۱۸ د لاندې شپږ شپږ مياشتې زيات کړے شۀ

1952 په فرورۍ کښې د بابا پوخ ملګرے او دوست قاضي عطاء الله خان چې د ډاکټر خان صاحب په وزارت کښې وزير تعليم وۀ ، وفات شۀ

1952 د باچا خان بابا په ميو هسپتال لاهور کښې اپريشن وشۀ

1954 په جنورۍ کښې باچا خان بابا سره د نورو خدايي خدمتګارانو د جېل نه رها کړے شۀ خو د پنډۍ په سرکټ هاوس کښې نظر بند وساتلے شۀ

1954 په مارچ کښې باچا خان بابا ته اجازت وکړے شۀ چې د بنګال اسمبلۍ اجلاس له لاړ شي ،هغۀ اسمبلۍ ته په اردو کښې تقرير وکړۀ او په کښې ئې هغه ټول وجوهات بيان کړل د کومو له وجې چې هغه جېل ته کړے شوے وۀ

1954 باچا خان بابا د ون يونټ مخالفت وکړۀ ، په دې مسئله کښې هغه د خپل ورور ډاکټر خان





صاحب مخالف وۀ کوم چې هغه وخت د مغربي پاکستان چيف منسټر وۀ

1955 حکومت د باچا خان بابا خپلې صوبې ته په راتلو پابندي ختمه کړه

1955 په ستمبر کښې باچا خان د صوبه سرحد دورې ختمې کړې او د بلوچستان په دوره د عبدالصمد خان اچکزي په وېنا روان شۀ

1955 بلوچستان ته لا په لاره وۀ چې سره د دوو ملګرو ګرفتار شۀ خو بيا په شپږويشتم ستمبر رها کړے شۀ

1956 په شپاړسم جون باچا خان بابا ملکي سلامتيا ته د نقصان رسولو په الزام کښې په شاهي باغ پېښور کښې ګرفتار کړے شۀ ، دغسې هم په دغه ورځ عبدالصمد خان اچکزے هم په کوئټه کښې ګرفتار کړے شۀ

1956 په شپږم ستمبر په لاهور هايي کورټ کښې د جسټس شبير احمد په عدالت کښې باچا خان بابا کيس شروع شۀ

1956 په شپږم ستمبر باچا خان بابا عدالت ته خپل ليکلے بيان ورکړۀ چې هغې کښې ئې د خپل ټول ژوند حالات ليکلي وو

1957 په څلېرشتمه جنورۍ عدالت باچا خان بابا څوارلس زره روپۍ جرمانه کړهٔ چې د هغې د ورکولو نه هغهٔ انکار وکړهٔ نو د هغهٔ جائداد په کښې ضبط کړے شهٔ

1957 باچا خان بابا پرېښودے شهٔ

1957 په وویشمته جنورۍ باچا خان بابا په پاکستان نېشنل پارټۍ کښې شامل شهٔ چې د شپږو مخالفو سیاسي پارټو نه جوړه شوې وه

1957 د باچا خان بابا مشر ورور ډاکټر خان صاحب په وومه جولايۍ د مغربي پاکستان د وزیر اعلیٰ د عهدې نه لرې کړے شهٔ

1957 د جولايۍ په میاشت کښې باچا خان بابا ، مولانا بهاشاني، میا افتخار الدین او جي ایم سید په ډهاکه کښې په یو کانفرنس کښې عوامي نېشنل پارټي جوړه کړه

1958 باچا خان بابا د "ون یونټ او پښتانهٔ" په نوم د ون یونټ خلاف یو پمفلټ چاپ کړهٔ

1958 په دیارلسم ستمبر باچا خان بابا بلوچستان ته د داخلېدو په جرم کښې کوئټه کښې ګرفتار کړےشهٔ ځکه چې ډسټرکټ مجسټرېټ بلوچستان ته د هغهٔ په داخله پابندي لګولې وه .





پېښور ته ئي راوستهٔ او رها ئي کړهٔ

1958 په یولسم اکتوبر باچا خان او مولانا بهاشاني صاحب د نورو اتو لویو لویو لیډرانو په شمول په مشرقي پاکستان کښې د پاکستان سېفټي ایکټ د لاندې ګرفتار کړے شول ، په دې موقع عبدالصمد خان اچکزے هم ګرفتار شهٔ او څوارلس کاله بامشقته قید کړے شهٔ

1959 په څلورم اپرېل باچا خان بابا رها کړے شهٔ ، هغهٔ د ټولې صوبې دوره شروع کړه ، هم په دغه کال باچا خان بابا سره دنورو سیاسیانو د ایبډو یعني Elective bodied disqualification order د لاندې تر کال ۱۹۷۲ء پورې نااهل وګرځولې شول

1961 په دولسم اپرېل کښې باچا خان بابا چې کله د سوېلې علاقو په دوره وهٔ نو په ډېره اسماعیل خان کښې د Public order ordinance د لاندې ګرفتار کړے شهٔ

1962 یو غېر سیاسي تنظیم "ایمنسټي انټرنېشنل" باچا خان بابا Prisoner of the year وګرځولو

1962 د دسمبر په میاشت کښې ایمنسټي انټرنېشنل د باچا خان بابا د رها کولو غوښتنه وکړه ځکه

چي حکومت به د هغهٔ قيد هر شپږ مياشتي پس زياتولو

1964 په د پرشمه جنورۍ باچا خان بابا د هري پور جېل نه رها کړے شهٔ ځکه د هغهٔ صحت ورځ تر ورځ خرابېدهٔ

1964 په وويشتمه مئي پنډت جواهر لعل نهرو مړ شهٔ ، باچا خان بابا د هغهٔ لور ته د تعزيت د پاره پيغام د تار په ذريعه ولېږهٔ

1964 په ستمبر کښي حکومت باچا خان بابا له برطانيې ته د علاج د پاره د تللو اجازه ورکړه ،په لندن کښي هغهٔ د صوبه سرحد د زوړ ګورنر جنرل اولف کېرو سره ملاقات وکړهٔ

1964 په دولسم دسمبر باچا خان بابا يورپ نه افغانستان ته لاړهٔ

1965 په يو درېشم اګست باچا خان بابا په کابل کښي په پښتونستان چوک کښي د پښتونستان د ورځي نمانځلو کښي شرکت وکړهٔ

1969 د مئي په مياشت کښي د هندوستان حکومت باچا خان بابا له د بين الاقوامي خېر خواهۍ په لړ کښي د هغهٔ د کړو خدماتو په اعتراف کښي " نهرو امن اېوارډ" ورکړهٔ





1969 په جون کښي د هندوستان وزير اعظمي اندرها ګاندهي په کابل کښي د باچا خان سره ملاقات وکړهٔ او د قران پاك د يوې نسخې نه علاوه ئې ورله د هندوستاني جوړه کپړه په تحفه کښي ورکړه

1969 باچا خان بابا د کابل نه د بېروت (لبنان) په لاره هندوستان ته لاړهٔ

1970 په فرورۍ کښي باچا خان بابا د هندوستان نه واپس افغانستان ته لاړهٔ

1972 په ځليرشتم دسمبر باچا خان بابا د يوې جرګې سره پاکستان ته د اتهٔ کاله جلاوطنۍ نه پس راستون شهٔ - په دې جرګه کښي خان عبدالولي خان، اجمل ختك ، محمد افضل خان، مولانا ګل بادشاه او مولانا عبدالباري شامل وو

1975 په دوېم اپرېل د باچا خان بابا خلاف يو کېس جوړ کړے شهٔ او په ديارلسم اپرېل د خانپور ريسټ هاوس ته ولېږلے شهٔ

1976 په وويشتم اپرېل باچا خان بابا ازاد کړے شهٔ

1977 په وړومبي اکتوبر جنرل ضياء الحق پېښور ته په دوره راغے او د باچا خان بابا سره ئې ملاقات وکړهٔ

1978 په دوهم مارچ باچا خان بابا د پاکستان نه افغانستان ته د خپل کتاب " زما ژوند او جدوجهد" ليکلو په غرض روان شۀ

1980 په شپږويشتم مارچ باچا خان بابا د طبعي معائني د پاره د کابل نه هندوستان ته روان شۀ

1980 د جولايې په اتلسم تاريخ د هندوستان نه واپس افغانستان ته لاړۀ

1980 په يوويشتم اګست باچا خان بابا د علاج د پاره روس ته روان شۀ

1980 په يولسم اکتوبر د روس نه افغانستان ته راغلو

1981 په ديارلسمه فروری باچا خان بابا ناجوړه شۀ

1981 په ديارلسم اګست د افغانستان صدر ببرك کارمل وغوښتو چې په خپل اهمو مسئلو ورسره خبري اترې وکړي

1981 په شپږم نومبر د افغانستان نه هندوستان ته روان شۀ

1982 په وړومبۍ جنورۍ د هندوستان نه افغانستان ته واپس راغے

1982 په دريم مارچ باچا خان بابا په جلال اباد کښې د کټ نه پرېوتو او ژوبل شۀ او د هغې له وجې د کابل په هسپتال کښې داخل کړے شۀ





1982 په اتويشتم اپرېل باچا خان بابا واپس پاکستان ته راغے

1983 د حکومت له خوا د کالاباغ ډېم جوړولو خلاف ئې تحريك شروع کړۀ

1983 د ټولې صوبې دوره ئې شروع کړه چې د حکومت له خوا د کالاباغ ډېم جوړولو خلاف اولس بېدار کړي

1984 باچا خان بابا د کالاباغ ډېم د مخالفت کولو په وجه په خپل کور کښې نظر بند کړے شۀ

1984 په وړومبي اپرېل باچا خان بابا د علاج دپاره افغانستان ته روان شۀ

1984 په شپږمه مئي د افغانستان نه واپس پاکستان ته راغے

1984 په نولسمه جولايې باچا خان بابا د عبدالولي خان ، مېرمن نسيم ولی خان او محمد اعظم خان سره افغانستان ته لاړۀ

1984 د ستمبر په نهۀ ويشمته نېټه د افغانستان نه واپس پاکستان ته راغلو

1985 د ال انډيا کانګرس په دعوت باچا خان بابا د سلمې کليزې نمانځلو له په شپږويشتم دسمبر هندوستان ته روان شۀ ، په دغه موقع عبدالولي

خان او د باچا خان نمسے ذوالفقار علی خان هم ورسره وو

1986 د جنورۍ په څلورم تاريخ باچا خان بابا د هندوستان نه راستون شۀ

1986 باچا خان بابا خپل اخري تقرير د پښتو عالمی کانفرنس ته په نولسم اپريل وکړۀ

1987 د مئي په مياشت کښې باچا خان بابا سخت ناروغه شۀ او د پېښور په لېډي ريډنګ هسپتال کښې داخل کړے شۀ

1987 د جون په څلورم تاريخ پرې د فالج حمله وشوه ، د هندوستان د حکومت په بلنه د ال انډيا مېډيکل انسټيټيوټ اف مېډيکل سائنس ته منتقل کړے شۀ چې تر شپاړسم اګسته پورې هلته وۀ

1987 باچا خان بابا له د هندوستان د تولو نه لوے ايوارډ بهارت رتن ورکړے شۀ

1987 د اګست په مياشت کښې بېرته پاکستان ته راوستلے شۀ او په لېډي ريډنګ هسپتال کښې داخل کړے شۀ۔

1988 د اګست نه تر شلمې جنورۍ باچا خان بابا بې هوشه پاتې شۀ او اخر په شلم تاريخ سحرپينځۀ





د برش منته کم اووۀ بجې ئي ساه ورکړه

1988 په يوويشتمه جنورۍ د بابا جنازه جناح پارك کښې درې بجې ماسپښين ادا کړے شوه

1988 په دويشتمه جنورۍ د خپل وصيت مطابق په جلال اباد کښې په خپل کور کښې خاورو ته وسپارلے شۀ

حوالي:


1. ډي جي تېنډولکر Faith is Battle
2. فريد احمد ، خان عبدالغفار خان
3. شېرزمان طائزے، Bacha Khan in Afghanistan
4. باچا خان ، زما ژوند او جدوجهد
5. شيلا کور، Khan Abdul Ghaffar Khan Congress Centenary
6. د ارکائيوز لائبرېرۍ د باچا خان متعلق دستاويزات
7. ايکنت ايسورن، Badshah Khan

قلندر مومند

## کاش چې هغه بیا هم رهنما وې

خان عبدالغفار خان د نن نه یو ولس کاله[1] وړاندې زمونږ نه جدا شۀ. په هغه ورځ چې کله ما د هغوي د وفات دا غمژن خبر واورېدۀ نو لکه چې زړۀ مې ارې ارې شۀ. باچا خان د پښتون د تاریخ هغه زرین باب دے چې د هغې شروع کېدو سره پښتنو د نوي دور ترقۍ پله ګامونه واخستل. دغه وخت زما په زړۀ کښې قسم قسم وسوسې پېدا کېدې. ما سوچ کولو چې د پښتنو د انګریز سامراج د سیاسي ، تعلیمي، معاشي او ثقافتي استحصال نه بچ کونکے او د پاکستان جوړېدو نه پس د دې تقسیم شوي بدقسمته قوم د راغونډولو د پاره هر وخت متحرك او د ازادۍ د شمعې د پتنګانو سرخېل خو د دنیا نه د تللو نه پس به مونږ څوك د استحصال نه بچ کوي خو وروستو راته دا خبره واضحه شوه چې دا زما جذباتیت وۀ خو دا هم یو حقیقت دے چې کله د چا پلار وفات شي نو غم او درد صرف

۱۔دا مضمون په کال ۲۰۰۰ء کښې لیکلے شوے دے (مؤلف)





هغۀ ته ورسېږي. باقي خلق خو د هغې غم درد نه نۀ خبرېږي کوم چې د ځوي په زړۀ تېرېږي. د تېرېدونکي وخت د هرې لحظې سره ما د باچا خان سره په تېر شوي ژوند غور کولو او د تېر وخت کړۍ مې د یو بل سره پېوست کولې او اخر دا چې د تار سر زما ګوتو له راغے. ما چې د باچان سره څومره ژوند تېر کړے وۀ. دې دوران کښې وخت په وخت ماته د دې خبرې احساس کېدۀ چې مونږ یوه بې بها ملغلره لګیا یو ضائع کوو. د پښتنو یو ښۀ یا بد عادت دا دے چې هغوي څوك دځان نه زورور نۀ مني او د ځان نه لوړ سر نۀ مني او دا صرف د پښتنو پورې محدود نۀ ده ، د هر انسان دا فطرت دے چې د ځان د پاره د یو ښۀ مقام سوچ کوي او په دغې لاره کښې چې کوم خنډ مخې له ورځې د هغې لرې کول فرض عېن ګڼي. د پښتنو دا بدقسمتي د باچا خان په لړ کښې هم خنډ جوړه شوه او د میر جعفر او میر صادق حواریانو د بهرنو بادارانو د خوشحالولو د پاره د هغوي خلاف یوه بې بنیاده پروپېګنډه وکړه او ساده زړې پښتانۀ ئې د هغۀ نه متنفره کړل او د یو وړوکي مقام د حاصلولو په خاطر ئې دا قوم د یو عظیم مصلح نه ناخبره وساتۀ.

باچا خان چې په کومه کورنۍ کښې پېدا شوے وۀ هغه د خپلې علاقې یوه با اثره کورنۍ وه. د باچا خان پلار بهرام

خان د علاقې په لويو خانانو کښې شمېرلے شۀ خو لکه د نورو خانانو ئې چرې هم د انګرېز حکم ته سر نۀ وۀ ټيټ کړے او چې د چرته نه هم ورته يو مظلوم د امداد خواست کړے وۀ نو سمدستي ئې ورله ځان رسولے وۀ ـ د باچا خان نيکۀ سيف الله خان د سرکاوۍ په جنګ کښې د ازادي خوښو خلقو ملګرتيا کړې وه او د پيرنګي د بونېر قبضه کولو اراده ئې د خاورو سره خاورې کړې وه ـ د باچا خان مور بي بي هم يوه مېلمه دوسته او د لوے نظر مالکه مېرمن وه ـ د چم ګاونډ غريبو او خوارو زنانو د پاره به ئې روټۍ په خپله پخوله او په هغوي به ئې تقسيموله ـ په داسې يو ماحول کښې د باچا خان پالنه وشوه او هغه د يو پښتون قام پرست په شکل کښې مخې ته راغے ـ هغوي په حالاتو ډېر ژور نظر لرلو او ورته د اول نه د دې خبرې احساس وۀ چې د پښتنو د ژوند په هر اړخ استحصال روان دے او د هغې وجه صرف دا ده چې دوي د علم نه لرې دي ـ د باچاخان په وختونو کښې د هغوي علاقه په پنجاب کښې شامله وه ـ پيرنګي په پنجاب کښې يو ځوسکولونه جوړ کړي وو خو د بدقسمتۍ نه په دې علاقه کښې داسې څۀ انتظام نۀ وۀ ـ بل کۀ سکولونه وو هم په هغې کښې تعليم په مورنۍ ژبه کښې نۀ وۀ ځکه نو مقامي خلقو ته به په زدکړه کښې ډېر مشکل پېښېدۀ ـ بل خوا د مليانو دا پروپېګنډه هم روانه وه چې سبق د مدرسې وئې د پاره د پېسې وئې جنت کښې به ئې





ځاے نۀ وي دوزخ کښې به غوپې وئې ـ دغه شان د اسلام نه ناخبره ملا د خپلې کم فهمۍ او د لږې فائدې د پاره پښتانۀ د تيارو کندې ته غورځولي وو ـ باچاخان چې به دا حالت ليدو نو ډېر به خفه کېدۀ خو څۀ لار ئې په فهم کښې نۀ راتله ـ په مشن سکول کښې د تعليم په دوران کښې باچاخان د براه راست کمېشن د پاره درخواست ورکړۀ چې د معمولي کاروايۍ نه پس منظور شۀ ـ باچا خان به اکثر فرمائيل چې فوځ ته د تلو شوق زما په زړۀ کښې زمونږ د نوکر باراني کاکا قيصو راپېدا کړے وۀ کومې چې به هغۀ ماته کولې ـ دغې دوران کښې به باراني کاکا منظر کشي هم کوله او د فوځيانو په تعريف کښې به ئې هغه څۀ وئيل چې د ډېرې مبالغې نه به ډك وو ـ دغه شان په غېر محسوسه توګه دا خبرې زما په نفسياتو خورې شوې چې زۀ به هم فوځي افسر جوړېږم خو قدرت ته داسې منظوره نۀ وه ـ د کمېشن ملاوېدو نه پس باچا خان پېښور ته د يو دوست ملاقات له راغے خوك چې په کپولري کښې افسر وۀ ـ باچا خان د هغۀ سره ولاړ وۀ او خبرې اترې ئې کولې چې دغه وخت کښې يو انګرېز لېفټېننټ راغے ـ دغه وخت د باچا خان دغه دوست سرتور سر ولاړ وۀ ـ ښائسته زلمے وۀ ـ وېښتۀ ئې ډېر ښۀ جوړ کړي وو او لږ وېښتۀ ئې په تندي پراتۀ وو ـ انګرېز افسر د يو دېسي افسر دا انداز برداشت نۀ کړے شۀ او سخت غصه شۀ او د باچاخان په وړاندې ئې هغۀ ته ډېر بد رد ووې ـ د باچا خان

دوست هم دغصې نه تك سور شۀ خو د جواب ورکولو همت ئې نۀ لرلو. باچا خان د دې واقعې نه پس ډېر زيات خفه شۀ او د پېرنګي د نوکرۍ نه ئې زړۀ وتکېدۀ. باچا خان به يو طرف ته د پښتنو د تېرو وختونو عظمت او دبدبې قرار له نۀ ورکولو او بلې خوا ته د انګرېز سامراج د پښتنو استحصال خوب ته نۀ پرېښودۀ او د دې واقعې نه پس خو باچا خان ډېر په سنجيدګۍ د پښتنو د مستقبل په حقله غور او فکر شروع کړۀ. د باچا خان د پاره دغه وخت کښې د لارې دمشالونو په توګه يو څو مجاهدين موجود وو خو باچا خان د يو نوي فکر بوټې نال کړۀ او د هغې وحشي قوم د سمولو د پاره ئې د يو مشن اغاز وکړۀ چا چې به په معمولي خبره پوره پوره خاندانونه په وينو لامبول.

ما به اکثر د هغوي نه دا تپوس کوۀ چې د دې ګران کار سر ته د رسولو د پاره خو ډېر وخت پکار دے ځکه چې يو داسې قوم چې د صدو نه د علم نه ناخبره پاتې شوے وي ، د هغې وجه کۀ هر څۀ وي هغوي د علم په کالو ښائسته کول د يو تن د وس کار نۀ دے نو تاسو دا ذمه واري څنګه په خپلو اوږو اخستې ده نو هغوي به ماته لکه د پلار په ډېر شفقت وفرمائيل چې دا کار به چا خو شروع کوۀ. الله پاك په ما مهربانه شۀ او ما له ئې د خپل قوم د خدمت موقعه راکړه. اوس ما سفر شروع کړے دے او انشاء الله هغه ورځ به ډېره زر راشي چې پښتانۀ





به تول تعليم يافته شي او نورو قومونو سره به د سيالۍ جوګه شي او خپل حېثيت به وپېژني. د باچا خان د پښتنو په طاقت او قوت، د هغوي د خپل کار سره مينه ، ايمانداري او اخلاص کله باور وۀ. په دې لړ کښې قسمت هم د هغوي ملګرتيا وکړه او داسې ملګري ئې ورکړل چې ثاني ئې نۀ لرله. د باچا خان خواهش وۀ چې پښتانۀ په هر مېدان کښې ترقي وکړي او د خپلو مشرانو نومونه راژوندي کړي. د دې مقصد حاصلولو د پاره دوي په مختلفو وختونو کښې د مختلفو اړخونو نه د پښتنو د يو کولو جدوجهد جاري وساتلو. باچا خان به دپښتنو د خپلو روايتونو او ثقافت نه په لرې تللو سخت غمژن کېدۀ. د هغوي وينا وه چې هر قوم په خپله ژبه ژوندے وي کۀ يو قوم خپله ژبه هېره کړي نو دنيا هغه قوم هېر کړي او کۀ د يو قوم نه خپله ژبه ورکه شي نو هغه قوم ورك شي. لکه چې بره بيان وشۀ د باچا خان د کور ماحول او تربيت او ذهني مېلان قوم پرستۍ پله وۀ ځکه نو باچاخان يو کلك او مخلص قوم پرست وۀ . هغوي به فرمائيل چې صرف هغه قومونه ترقي کولے شي د چا چې د خپلې خاورې سره مينه وي او چې څوك د خپل وطن وفادار نۀ وي هغه پښتون نۀ دے . باچا خان نۀ يواځې په تعليمي مېدان کښې د پښتنو سره د کېدونکې سلوك ازاله کول غوښتل بلکې د خدايي خدمتګار تحريك په ذريعه ئې د پښتنو د تربيت اغاز هم کړے وۀ او هغه خلق ئې مخې ته

راوستي وو چې په عام ژوند کښې ئې څۀ خاص حېثيت نۀ لرلو
. د نورو خانانو نوابانو برعکس به باچا خان غريبانانو خلقو
سره په ناسته پاسته کولو خوشحالېدۀ او د هغوي به ئې هر
قسم امداد کولو . د باچا خان دې طرز عمل دغه کمزوري خلق
د هغۀ مئينان کړل او پښتانۀ لکه د لېونو په خدايي خدمتګار
تحريك کښې شاملېدل شروع شو . د دې نتيجه دا شوه چې
خانان يواځې پاتې شو او داسې په بالواسطه طريقه د پېرنګي
حکومت ته خطرې رامخې ته شوې ځکه چې د دې نوابادياتي
کالونۍ دا دېسي پېرنګيان د انګرېزانو د پاره ډېر اهميت
لرونکي او د کار خلق وو . پېرنګي چې کله دا صورت حال
وليدۀ نو د باچا خان نګراني ئې شروع کړه او دغسې د يو
خدايي خدمتګار خلاف د هغې وخت لوے قوت مېدان ته
راغے خو افرين دې وي په دې ستر او لوړ پښتون مشر چې په
هر محاذ ئې سامراج له ماتې ورکړه او په خپلو اصولو او
مضبوط کردار ئې د ازادۍ بې شمېره پتنګان د ځان نه
راچاپېره کړل خو باچا خان د هغې افاقي دين پېروکار وۀ چې د
امن درس ئې ورکولو . له دې وجې نه باچا خان پښتنو له د عدم
تشدد تعليم ورکړۀ . د هغؤي وينا وه چې تشدد نفرت او عدم
تشدد مينه پيدا کوي . باچا خان د خدايي خدمتګار تحريك د
قيام نه مخکښې د تحريك اصلاح الافاغنه نه د دې جدوجهد
شروع کړې وه . دغې دوران کښې هغوي د هغه وخت لوے



باچاخان عهد ساز شخصیت

لوے مشران د نزدې نه وليدل . مسلمانانو مشرانو کښې
اکثريت د نوابانو ، جاګيردارانو او وډېره ګانو وۀ او باچا خان
په خپله يو درويش او مسکين سړے وۀ . دوېمه لويه وجه د
هغوي د پښتنو خلاف تعصب وۀ چې د هغې له وجې باچا خان
او نور مسلمانان مشران يو ځاے نۀ شو .

باچا خان به د پنجاب يوه واقعه ماته اکثر بيانوله
(شايد له دې وجې چې زما تعلق د صحافت سره وۀ او دا واقعه
هم د صحافت سره متعلق وه) فرمائيل ئې چې دا پنجابيان
عجيبه خلق دي يوه ورځ د زميندار اخبار په دفتر کښې ناست
وم په خبرو خبرو کښې ما اخترعلي خان ته ووې چې مونږ ښۀ
دوستان يو کۀ نه ؟ نو کۀ د پنجاب ټول اخبارونه زما خلاف
ليکي نو زۀ اميد لرم چې زما دوست به زما متعلق پنجاب له
غلط معلومات نۀ ورکوي . د هغۀ جواب زما د پاره ډېر
حېرانوونکے وۀ ، هغۀ په زوره وخندل او وې وئيل چې مونږ
اخبار واله نۀ د پنجاب سره همدردي لرو او نۀ د هندوستاني
ليډرانو سره . زمونږ خو د يو ښۀ خبر سره کار وي کۀ د هغې په
حاصلولو کښې د دواړو ډلو بې عزتي ولې نۀ وي او ډېره
عجيبه خبره دا وه چې باچا خان سوشلزم خوښولو او نور
مسلمانان مشران ئې مخالف وو . د دوي په مقابله کښې د
خدايي خدمتګار او کانګرس يو بل سره مينه ډېره وه چې د
هغې بنيادي وجه د کانګرس د پېرنګي سره دشمني وه .

کانګرس په هر قيمت ازاد او خودمختار هندوستان غوښتۀ او مسلم ليګ د هندوستان تقسيم غوښتۀ ـ هندو سره نزدېکت باچا خان د عوامو په نظر کښې مجرم وګرځولو ځکه چې د مسلم ليګ نعره دا وه چې مسلمان وي نو هغه به مسلم ليګ کښې وي او باچا خان ښکاره باره د کانګرس حمايت کولو ـ دا اوس د سوچ مقام دے چې مسلم ليګ خو حق لري چې ځان ته د ټولې ابادۍ د يوې برخې نمائنده ووايي خو چې کله هغه حق باچا خان استعمالوي نو غدار او د هندوانو ايجنټ ګڼلے شي او دا هغه بنيادي وجه وه چې باچا خان ئې مسلم ليګ ته نزدې کېدو ته پرې نۀ ښودۀ ـ باچا خان به فرمائيل چې هر قوم حق لري چې د خپلې ترقۍ د لارو د پاره په خپله سوچ وکړي نو بيا مونږ د خپل مرام او منزل نه ولې منع کولے شو ؟ د پښتون قوم د حقونو د پاره هغوي د هرې سختۍ په رونړ تندې مقابله کړې وه ـ بعضې وخت خو به تر دې وشوه چې انګرېز سامراج به په يوه مقدمه کښې جرمانه کړۀ نو د جرمانې په بدل کښې به ئې د هغۀ جائداد د مارکيټ د نرخ نه د کمو پېسو حساب کړۀ او هغه جرمانه به ئې ترې وصول کړه او دغسې د پښتنو د ازادۍ په لاره کښې قسم قسم خنډان ودرولي شو خو د باچا خان سفر جاري وۀ ـ دې دوران کښې پېرنګيانو د هندوستان د تقسيم منصوبه پېش کړه چې د کانګرس مشرانو مسترد کړه ځکه چې پېرنګيانو ته دا حق حاصل نۀ وۀ چې د تجارت په بهانه د





کوم ځاے نه راغلي ، يو لوے وطن ئې قبضه کړے او بيا ئې هغه ټوکړې ټوکړې کولو ـ باچا خان د هند تقسيم د مسلمانانو تقسيم ګڼلو ـ د تقسيم په مسئله د کانګرس ، مسلم ليګ او وائسرائے خو ځله مذاکرات وشو او اخر دا چې د تقسيم په دې منصوبه اتفاق رائې پېدا شوه ـ د فارمولې مطابق دا مقرر شوي وو چې کومې صوبې او رياستونه پاکستان يا هندوستان کښې شامليدل غواړي هلته به د صوبې اسمبلي، د رياست مهاراجه يا جرګه فېصله کوي ـ د اصولو لاندې د پنجاب او سندھ اسمبلو نه رايې وغوښتې شوه او د هغوي د فېصلو احترام هم وشو او د بلوچستان فېصله د جرګې په ذريعه وشوه. اوس زمونږ د صوبې څۀ حال شۀ ـ د يو سازش لاندې دلته مقتدر کانګرس نظر انداز کړے شۀ او د رېفرنډم اعلان وشۀ ـ باچا خان د کانګرس اسمبلۍ د دې غېر جمهوري اقدام سخت مخالفت وکړۀ او د بائيکاټ اعلان ئې وکړۀ ـ د رېفرنډم د نتيجو منظر عام ته راتلو سره معلومه شوه چې ۴۹ فيصده عوامو د پاکستان په حق کښې ووټ ورکړے دے او په حکومت ئې د عدم اعتماد اظهار کړے دے ـ په دې وخت کښې د جناح صاحب په ژوند د رياستي دهشت ګردۍ او هارس ټرېډنګ ابتدا وشوه ـ د کانګرس د اسمبلۍ غړي څۀ په زور او جبر او څۀ د لالچ ورکولو په ذريعه د اسمبلۍ اجلاس کښې د شريکېدو نه منع کړے شو او دغسې يوه منتخب

ائيني اداره پامال کړې شوه او جمهوريت مضبوط کړے شۀ.
مسلم ليګ د پاکستان د جدوجهد د پاره حق لري نو ولې باچا
خان د پښتنو حقونه نۀ شي غوښتې. دا هغه ناقابلِ فهم نکته
ده چې ملك کښې ئې غېر يقيني کېفيت ختمېدو له ورنۀ کړۀ
خو د قيام پاکستان نه پس د دستور سازۍ اسمبلۍ د يو غړي
په حېثيت باچا خان مسلم ليګ ته د مکملې مرستې پېشکش
وکړۀ خو بيا هم چا په ارام پرې نۀ ښودۀ. باچا خان به اکثر د
پېرنګي د دور او د قيام پاکستان نه پس د هغۀ سره د شوي
سلوك موازنه کوله او ډېر په حېرانۍ به ئې تپوس کولو چې
انګرېز ظلم کولو نو هغه خو زمونږ دشمن وۀ او مونږ د هغۀ خو
د يو اسلامي جمهوري ملك له طرفه چې زۀ ولې بې شمېره ځله
جېلونو ته لاړم. دا زما په پوهه کښې نۀ راځي. د پاکستان
جوړېدو نه پس باچا خان د پښتنو د حقونو د پاره خپل
جدوجهد جاري وساتلو او د هر يو ظلم ئې په نره مقابله وکړه.
د حکومت د باچا خان سره د تعاون دا حال وۀ چې پېرنګي په
دور کښې باچا خان پينځلس کاله جېل تېر کړے وۀ او د
پاکستان جوړېدو نه پس په ابتدايي اتلسو کالو کښې دې ستر
انسان پينځلس کاله په جېل دننه تېر کړل. د هغوي قصور څۀ
وۀ ؟ دا خو د تاريخ په پاڼو کښې محفوظ شوي دي خو دا خبره
هم فېصله شوې ده چې کۀ پښتانۀ باچا خان خپل محسن ونۀ
ګڼي نو بيا هم د حقيقت نه انکار نۀ شي کېدے. باچا خان ته د





دې خبرې ډېر زيات افسوس وۀ چې د هغوي له طرفه حکومت
ته د پوره مرستې او يقين دهانۍ ورکولو باوجود په هغوي د
دروغو مقدمې جوړې کړې شوې او دپښتون قوم د ترقۍ نه د
منع کولو د پاره قسم قسم منصوبې جوړې کړې شوې خو باچا
خان دغه ټولې منصوبې د پوره کېدو نه مخکښې مخکښې د
خاورې سره خاورې کړې. د پاکستان جوړېدو نه پس د باچا
خان ټوله توجه صوبايي حقونو حاصلولو طرف ته وه او په
پاکستان کښې ئې په وړومبي ځل د نېشنل ازم نعره پورته کړه
او په دې تحريك کښې ورسره د بلوچستان او سندهـ او پنجاب
محب وطن خلقو هم ملګرتيا وکړه او دغسې د پاکستان
حکومت په يو وخت د څلورو ګاندهيانو خلاف د کاروايۍ
اغاز وکړۀ. د پنجاب ، سندهـ او بلوچستان ګاندهيان خو په
دې ځغل کښې وروستو پاتې شو خو سرحدي ګاندهي د دې
مشن سر ته رسولو د پاره عوامي نېشنل پارټي جوړه کړه چې
هغې يو اهم کردار ادا کړۀ او لګيا ده اوس هم ادا کوي خو د
باچا خان مشن لا سر ته نۀ دے رسېدلے. د دې مشن سر ته
رسولو د پاره اوس ځوانانو له مخکښې راتلل او په علم او ادب
، تاريخ او جغرافيه او د زمکې او اسمان په وسعتونو کښې
خپل مقام پېدا کول پکار دي ځکه چې د باچا خان قول دے
چې د ازادۍ بوټے د خوانانو په وينو لوئېږي. نن ضرورت د دې
خبرې دے چې کۀ مونږ خپلې خاورې د پاره د نور څۀ کولو

قابل نهٔ يو نو کم نه کم دا دعا خو کولې شو چې اے خدايه! د پښتون قوم د رهنمايۍ د پاره يو بل باچا خان راکړې . شايد دې سره پښتانهٔ د خپل محسن سره د کړې سلوك کفاره ادا کړے شي.





پروفېسر ميا عنوان الدين کاکا خېل

## باچا خان او د هغهٔ خدايي خدمتګار تحريک

د پښتو د ستر قامي شاعر خوشحال خان ختك چې د توري او قلم خاوند وهٔ ، وېنا ده :

مړهٔ هغه چې نهٔ ئې نوم نهٔ ئې نشان وي
تل تر تله په ښهٔ نوم پايي ښاغلي

زمونږ د ستر ملي قهرمان باچا خان هم په داسې ښاغليو کښې يو ځانته ښکاره مقام لري د چا ژوند او شخصيت چې د دې سيمې ، د برصغير بلکې د نړۍ په سياست او تاريخ ډېر ژور اثر غورځولے دے ، کهٔ مونږ د دوي په حقله تار تاريز بحث کوو نو خبره به اوږده شي او بيا به هم نيمګړې پاتې شي نو ځکه زهٔ خپل بحث د باچا خان د قامي غورځنګ ، افکارو، نظرياتو او اهدافو پورې محدود ساتم او په هغې کښې به هم غټ غټ ټاټکي را اوچت کړم.

باچا خان د وړوکوالي نه د غور او فکر اموخته وهٔ ، په هر خبره، هره واقعه او په هر حرکت به ئې غور کولو. په تپوسونو تپوسونو به ئې د هر علت او معلول ژورتيار ته ځان

رسوۀ چې زلمے شۀ نو نۀ صرف د غور او فکر قوت ئې سپوا شۀ بلکې د ژورې پخې قوتِ مشاهدې او تېزې قوتِ حافظې علامې هم پکښې راڅرګندې شوې او کله چې ځوان شۀ ، د دې خدايي صلاحيتونو په برکت ئې د پښتون قام او د دې خاورې د عام اولس بدحالي ، بې علمي او په بدو ورځو ککړ ژوند ته ئې پام شۀ - د دې صورتِ حال لټون ئې شروع کړۀ او د غور او فکر نه پس په دې نتيجه ورسېدۀ چې زما د خوارې کښ قام د بې اتفاقۍ، دښمنو، تربګنو، د تعليم د نشت والي ، د زنانو د حقوقو خيال نۀ ساتلو، د غلطو رسمونو ، رواجونو د پېروي کولو او په تېره تېره د پېرنګي غلامي د جاګير دارانو د زور ګيرۍ او ناوړې سلوك له سببه د دې زپلي اولس دا حال شوے دے - د جهالت ، مايوسۍ ، بې عملۍ د ژورې کندې نه د راوېستلو د پاره باچا خان په شعوري توګه يو کړن لاره وټاکله - هم خيال او هم راز ملګري ئې پېدا کړل چې په زړۀ کښې د قام مينه، درد ، همدردي او خېرخواهي وه ، لکه د باچا خان د قام په دې زپلي او ناوړې حالت دلګير ، خفه، پرېشانه او خوږمن وو - د دې ملګرو په صلا او مشوره ئې د انجمنِ اصلاح الافاغنه بنياد کښېښودۀ - باچا خان د خپلو ملګرو سره د دې صوبې او سيمې کلي په کلي ، کوڅه په کوڅه ، حجره په حجره او جومات په جومات وګرځېدۀ - د سهولتونو او وسيلو د نيشت والي له کبله دا اوږدې مزلې ئې پياده کړې دي - هر ځاے د قام





د يو والي ، اتفاق ، اتحاد او ورورولۍ خبرې ئې کوله - ټولو ته به ئې د يو موټي کېدو وينا کوله - د عمرونو زړې خونړۍ دښمنۍ ئې د جرګو مرکو له لارې په دوستۍ کښې بدلې کړې - خلق ئې د غلطو رسمونو ، رواجونو د تباهۍ بربادۍ نه خبر کړل - د تعليم په اهميت ئې پوهه کړل - دغه شان ئې د قام د ښېرازۍ ، سوکالۍ، ترقۍ پېغام د خپل عدم تشدد د فلسفې سره د سيمې ګوټ ګوټ ته ورسوۀ -

د قام د بچو د ابتدايي او بنيادي تعليم د پاره ئې مدرسې جوړې کړې - په لږو وسائلو کښې په مختلفو علاقو کښې د ازاد سکولونو جال ئې خور کړۀ - دا په هغه زمانه کښې د ويړيا او خېراتي تعليم خورولو يوه لويه کارنامه وه - د هغۀ د پېغام صداقت، د هغۀ د شخصي کردار سپېڅلتيا ، د هغۀ د شېرين بيانۍ له کبله د باچا خان په جلسو کښې به خلقو ډېر په جوش او جذبه ، شوق او مينه ګډون کولو -

کله چې باچا خان دې نتيجې ته ورسېدۀ چې قام زما په اواز د زړۀ د اخلاصه راپورته کېږي نو د ملګرو په صلا ئې د خدايي خدمتګار تحريك په نوم يو تنظيم جوړ کړۀ - ډېر زر په دې تحريك کښې د زلمو، ځوانانو او بوډاګانو شمېر دوو لکو ته ورسېدۀ - د هغه وخت د ابادۍ په لحاظ دا ډېر لوے تعداد او غټ قوت وۀ - د دې تحريك چلولو نه د باچا خان مطلب د

پښتنو سماجي او اقتصادي حالاتو کښې د بدلون راوستل او
پښتانهٔ د ترقۍ او ښېرازۍ طرف ته رابلل وو.

ولې د پېرنګي سامراج ذهن د باچا خان دا مقبولیت د
هغهٔ پېغام پذیرایي او د ټول قام او اولس په یوه چغه د هغهٔ د
ذات نه راچاپېرېدل کله زغملے شو. پېرنګے یو غاصب قوم وهٔ.
هغهٔ خپله چارهٔ په اوبو کښې ولیده. پېرنګي د تشدد ، ظلم،
بربریت، جبر او سختۍ خپلې استعماري حربې شروع کړې.
خپل برېسي ئې د باچا خان مخالفت او د هغهٔ د تحریك ملګرو
مزاحمت ته ودرول. قصه خوانۍ، ټکر، ګوجر ګړۍ، میروس
ډېرۍ، هاتي خېل، سپین تنګے او داسې نورو ډېرو ځایونو ،
کلو او بانډو ته د ازادۍ په جنګ کښې د تاریخي سنګرونو
اعزاز حاصل شهٔ. د باچا خان ډېر ملګري د شهادت په رتبه
سرفراز شو.

ځان چې د مذهبي دنیا نمائنده او بادار ګڼلو ، د هغه
پېرنګي د لاسه د باچا خان او د هغهٔ ملګرو سره هغه ناروا او
ناوړه سلوك وشهٔ چې تاریخ به ئې په یادولو او قلم به ئې په
لیکلو شرمېږي. ولې د حریت فکر ، د عدم تشدد د فلسفې
علم بردار، د ملي غورځنګ د قافلې د سالار او د هغهٔ د
سربازانو او سر په تلې کښې اېښې ټنګیالو ملګرو پېغام د
دنیا ګوټ ګوټ ته ورسېدهٔ. د هغه وخت اخبارونه په دې ګواه
دي.





د پېرنګي زور، ظلم ، زیاتي، جبر او تشدد چې د حد نه زیات
شهٔ نو باچا خان او د هغهٔ ملګرو د هندوستان د مسلمانانو
یوې سیاسي ډلې مسلم لیګ مشرانو ته د مرستې او ملاتړ
خواست وکړهٔ. د هغې غاړې ځهٔ حوصله افزا ځواب رانهٔ غلو ،
مجبوراً باچا خان او د هغهٔ ملګرو کانګرس ته لاس اوږد کړهٔ.
هغوي ورسره د کلکې مرستې او ملګرتیا لوظ وکړهٔ. دا اتحاد
د پاکستان تر جوړېدو قائم وهٔ.

پېرنګے رخصت شهٔ. پاکستان جوړ شهٔ. باچا خان د
ماضي تراخهٔ یادونه هېر کړل او په ۲۳مه فرورۍ کال ۱۹۴۸ء
ئې د پاکستان د ائین سازې اسمبلۍ د غړیتوب سوګند پورته
کړهٔ.

ولې په دې کښې هم باچا خان خپلو مخالفینو ، مفاد
پرستو عناصرو په ارام پرېنښودهٔ. د سازشونو او دسیسو او
مخالفانه پروپېګنډې هغه پخوانۍ سلسله هغسې روانه وه.
جیلونه ، حوالاتونه، سزاګانې، صوبه بدرې د خدایي
خدمتګارانو په برخه وې. باچا خان سره چې خپلو او پردو ځهٔ
وکړهٔ هغه اوس د تاریخ حصه ده.

دلته مونږه د خپل بحث دویم پړاو ته راورسېدو چې د
باچا خان د سماجي اولس خدمتونه او سیاسي تحریك په حقله
د راپورته شوي فکر انګېزه سوالونو لنډه شان جائزه واخلو. د
باچا خان د خدایي خدمتګارۍ د بې پناه زور او شور،

کاميابۍ او مقبوليت په حقله خبرې کېږي چې دا څنګه ؟ ولې ؟ وړومبۍ خبره خو دا ده چې باچا خان د مرض صحيح تشخيص کړے وۀ، بيا ئې د علاج د پاره يوه کاميابه او تيربه هدف نسخه تجويز کړې وه. د باچا خان په ځان باور او د خپل مشن په صداقت پوخ يقين وۀ. د هغۀ د پېروکارانو د هغۀ په ذات اعتماد وۀ. دهغۀ مشن ئې خپل مشن ګڼلو. بل باچا خان يو عملي انسان وۀ. د هر کار شروع به ئې د خپل ځان نه کوله. لکه په ازاد سکولونو کښې د غني خان او ولی خان داخلول، د هر پښتون د حجرې جارو کولو په مهم کښې په خپله برابر شريك وۀ. باچا خان يو سپين نيتے ، ډاګيز ، سادګي پسند او قناعت پسند انسان وۀ. د هغۀ ټول ژوند هم د دغه اصولو نه عبارت وۀ. دغه وجه وه چې د پښتون غونډې سرکشه ، باغي او ځيګرور قوم کښې په کاميابۍ سره د عدم تشدد د فلسفې بوټي نال کړۀ. د پښتنو په روايتي ORTHODOX معاشره کښې د زنانو د حقوقو علمبردار وۀ. د هغۀ په جلسو کښې به په ګڼ شمېر کښې د زنانو د شرکت اهتمام کېدۀ. په داسې يوه جلسه کښې د يوې اوچتې ډېرې د پاځه زنانه راجمع شوې وې (په تفصيل کښې نۀ ځم، دا به په خود ستايۍ کښې راشي) کله چې باچا خان زلمو ته په تحريك کښې د شموليت او په جوش او خروش د برخې اخستلو اپيل کولو نو په دغه زنانو کښې يوې ننګيالۍ پېغلې په اوچت ولې په پُرسوز اواز کښې دا ټپه





هوا کښې زمزمه کړه او د ملالې د تاريخي ټپې ياد ئې تازه کړۀ:

کۀ د زلمو نه پوره نۀ شوه
فخرافغانه! جينکۍ به دې ګټينه

دوي د خپل تحريك او هلو ځو کاميابولو د پاره هره روغه لار خپله کړې وه. په دې سلسله کښې د پښتو ژبې او ادب نه هم ډېره فائده اخستې وه . د تحريك ORGAN ارګن د پښتو وړومبۍ رساله "پښتون" د هر لوستي پښتون کورته رسېدلې وه. د تحريك پېغام ئې هر ګوټ ته رسولے وۀ. ښځو او سړو به په ليکلو کښې يو شان برخه اخسته. د دې رسالې په برکت د پښتو په ادب کښې غټ غټ نومونه ښکاره شو. باچا خان يونيورسټي چارسده او عبدالولي خان يونيورسټي مردان کښې د ايريا سټډي سنټرز ته پکار دي چې په داسې موضوعاتو تحقيق او څېړنه وکړي. دا به د نوې کول د لارې روښانه کولو د پاره د ليت کار وکړي.

د باچا خان په قافله کښې د وطن پاله قام پرستو اديبانو او شاعرانو يوه غټه ډله شامله وه. د دوي د ډرامو ، مشاعرو درز په ټولو سيمو کښې خور وو چې تحريك ته ئې ډېرې ښېګړې رسولې دي. دا نن چې د پښتو ژبې او ادب باغ باړۍ داسې سمسورې دي ، دا هم د دغه تحريك او مشرانو برکت دے. (دا هم د تحقيق يوه غوره موضوع ده).

بله غټه خبره دا ده چې پښتنه معاشره د پېړو نه په طبقاتي اډانه ولاړه ده . ولې باچا خان په خپله د هشتنغر د يو لوے خان ځوے وۀ . ولې هغه د دې امتيازاتو او جاګيردارانه ذهنيت هېڅ پروا نۀ کوله . دغه وجه وه چې د خدايي خدمتګار تحريك عهدې د معاشرې د بې وزله خلقو او كسب ګرو په لاس كښې وې . دا هغه وخت څۀ چې نن هم يو ډېر ناشونے كار ګڼلے شۀ .

باچا خان د خپلو پېروكارانو او كاركنانو باقاعده سياسي تربيت كولو . هر يو غړي به ئې په شخصي توګه پېژندلو . د دې تربيت د كبله د خدايي خدمتګارو او ټول پښتون قام سياسي شعور او سياسي بېداري هغه سطح ته رسېدلې وه چې نن ئې هم صفتونه كېږي . يو غټ مثال دا دے چې د ولي خان د ليكلي كتاب " باچا خان او خدايي خدمتګاري" په سر پاڼه باندې د سوونو تربيت يافته باوردي كاركنانو يو تصوير دے . باچا خان سره د خپلو ماشومانو د پرېټ په سر كښې ولاړ دے . زۀ چې كله دا كوټلے تصوير ووينم نو د باچاخان د هغه ملګرو او تحريك قدر مې په زړۀ كښې نور سېوا شي . د دې تربيت اثر وۀ چې زمونږ په كورونو ، خواوشا ګاونډيانو بلكې د ټولې سيمې په كورونو كښې زنانوو دغه سرې جامې د يو مقدس امانت په طور ساتلې .

څنې كسان وايي چې بعضې ليډرانو خو په جېل كښې يوه شپه هم نه ده تېره كړې او كاميابي ئې موندې ده . د





سياسي كاميابو د پاره جېل ته تلل ضروري نۀ دي ولې حالاتو دا هم ثابته كړې ده چې داسې كاميابۍ پائيدارې او مفيدې نۀ وي . اول د خپل ملك پاكستان ننني حالاتو ته وګورئ . بل ګمان كوم چې داسې كسان د دې حقيقت نه ولې سترګې پټوي چې زمونږ د ملك په تاريخ كښې ډېر څله داسې شوي دي چې كسان په چترۍ راكوز شي او تيار خانك ته پرلت ووهي . د ټوپك ډز او د كوټك د ډب نه خبر نۀ شي . نن پرون هم د ملك په سياسي فضا كښې په چترۍ خلق خېژي او كوزېږي . دې ته به څوك كاميابي ووايي؟

د تاريخ مطالعه دا ښايي چې د دنيا د لويو لويو تحريكونو مشرانو جېلونه خوړلي دي . تكليفونه ئې ګاللي دي ، سختي ئې زغملي دي . بيا ئې چرته كاميابي او كامراني ښكل كړې ده . داسې خلق نن هم د اولس په زړونو حكومت كوي . په برصغير كښې ګڼ نومونه شمېرلے شي ولې په ننني دور كښې نلسن مېنډېلا ، انګ سانګ سونچي مثالونه زمونږه د وړاندې دي ، ولې افسوس دا دے چې مونږه خپل قامي او ملي اتلان هغسې ونۀ قدرول څنګه چې د هغوي حق دے .

باچا خان او د هغۀ خاندان ته الله تعالىٰ ORATATION او NARRATION يو بې ساري قوت وربخښلے وۀ . د تقرير او بيانيه تحرير په ناوياته قوتونو ئې نمانځلي وو . په دې يو مثال

به زما دا خبره په ښه ډول واضحه شي ـ کله چې د اوږدې جلاوطنۍ نه باچا خان وطن ته واپس راغلو ، د جلسو سلسله بیا پېل شوه ـ په کالو خان کښې جلسه وه ـ مونږه څو ملګري هم دغه جلسې ته تلي وو ځکه چې د ډېرې اوږدې مودې نه پس د باچا خان لیدو ته هر کس لېواله وهٔ او تقریر اورېدو ته ئې د هر چا تلوسه وه ـ بل مونږه دا هم کتل چې د دومره غېر حاضرۍ نه پس به د باچا خان په ملګرو او پېروکارانو څهٔ شوي وي او کنه؟ جلسه ډېره زیاته درنه وه ، د خوا و شا کورونو په کوټو زنانه هم جلسې ته ناستې وې ـ باچا خان چې تقریر ته اودرېدهٔ PEN DROP خاموشي شوه ـ باچا خان مرۍ تازه کړه ، وئیل ئې زما قامه !بیا ئې لږه وقفه وکړه په دوېم ځل ئې بیا ووې زما قامه! ساه نیولے شهٔ ، ټولې جلسې ته ئې یو خوا بل خوا وکتل او په درېم ځل ئې په غریو نیولي اواز کښې دا ټکي پوره نهٔ وو وئیلي چې اے زما قامه چې په جلسه کښې د یوې زبردستې ژړا یوه غلبله پورته شوه ـ ښځو یو بل له غاړې ورکړې ـ سړو په ډرك ډرك وژړل ـ زمونږ جذبات هم بې قابو شو ـ یو ملګري په ژړغوني اواز تپوس وکړهٔ ، اے دا څهٔ چل دے؟ ما ورته ووې معجزه وشوه ـ د اُورینټېشن معجزه ، دې ته ORATATION وایي ـ باچا خان د خپل اُورینټېشن په برکت په دوو ټکو کښې خپل پېغام قام ته ورسولو ـ څهٔ ګړۍ شېبه پس چې حالات قلار شو باچا خان خپل تقریر شروع کړهٔ ـ





خبره ډېر نه اوږدوم خو یو حقیقت ته ستاسو توجه راګرځول غواړم ـ بې شکه چې باچا خان د پښتنو په پاکه او بختوره خاوره پېدا شوے وهٔ او مونږه پښتانهٔ ئې خپل ستر ملي اتل ګڼو ، ولې د امن او د عدم تشدد د دې قداور استازي اقوال ، افکار ، سیاسي ، سماجي نظریات ، فلسفهٔ فکر او نکته نظر د اصل نسل خاورې او پولې حدود نه وتي دي ـ د انسان او کلهم انسانیت د پاره د امن ، خوشحالۍ او سوکالۍ زېرے ګرځېدلے دے او د باچا خان پېغام دې اعلیٰ ، مقدس او پیاوړي مقصد ته غاړه غتې شوے دے ـ زهٔ چې وینم نو په دې سلسله کښې ماته د هغهٔ مقام د امن د درنو درنو استازو نېلسن منډېله او انګ سانګ سونچي وغېره نه هم اوچت ښکاري ـ زمونږ سکالرز او ریسرچر ته پکار دي چې د باچا خان د عدم تشدد په فلسفه تار تاریز ریسرچ او تحقیق وکړي او هغه مقام ته ئې ورسوي چې د ملل متحد د چارټر حصه وګرځولے شي ـ د دنیا ستر طاقتونه ترې د دنیا د پوخ امن د پاره کار واخلي ـ داسې به د بدامنۍ ، بې انصافۍ او سرې خورګۍ ښکار دنیا د امن ، سوکالۍ او خوشحالۍ زانګو وګرځي ـ

خبره به د خدايي خدمتګارۍ د تحريك د ستر ملي قهرمان او پښتو ژبې د انقلابي شاعر اجمل خټك مرحوم په دې شعر پاى ته ورسوم :

نن ټول خلق د هغه محبوبا سندرې وايي
خټك چې به د ځان سره ژړله كله كله





م ـ ر ـ شفق

## طنز او مزاح د باچا خان په خبرو كښې

د خپلو مشرانو پوهانو نه به مې اورېدل او بيا مې پخپله هم يو څو ځله په خپله هم دا ننداره كړې ده چې په يوه لويه درنه جلسه كښې به د تقرير او خطابت په فن پوهه ماهرانو ، سياسي مشرانو او ديني عالمانو داسې شانداري وېناګانې وكړلې او داسې زړهٔ راښكونكي بحثونه به ئې وكړل چې د راپېښو مسئلو هېڅ يو اړخ به تړے پاتې نهٔ شو او بيا د نور څهٔ وئيلو به هډو امكان نهٔ وهٔ ـ لكه په يو وخت په ستېج به سردار شوكت خان، نوابزاده نصرالله خان، چودري ظهورالهی، قاسم ملك ، شورش كاشميري، عبدالولي خان ،مولانا مفتي محمود او د اجمل خټك غوندې نومورو وېناوالو د جوش جذبې نه ډك ، فصيح او بليغ تقريرونه وكړل نو د ټولو اخر ته به باچا خان ته د خبرو كولو بلنه وركړې شوه ـ

داسې مهال كښې د تقرير او خطابت په نشه مستو مئنانو تاثرات او احساسات به عموماً دا وو چې اوس د نورې وېنا پاتې څهٔ دي ؟ بابا خو به زوړ تار غړوي ـ هم هاغه زړې خبرې بيا بيا كوي څهٔ خوند مزه به ورنهٔ كړي ـ

د باچا خان د تقریر په بابله دا رایې او تبصره بې ځایه هم نهٔ وه. واقعي چې د بابا فخر افغان په الفاظو کښې شاعرانه حسن او رنګیني نهٔ وه ـ نهٔ پکښې تورقې وشتې وې ، نهٔ پېڅې نخرې ، خو د پښتنو دغه سل کلني مشر او د ازادۍ عظیم مجاهد به چې په قلاره پسته ، خوږه او رعب داره لهجه کښې ساده سوده پښتو کښې خبرې شروع کړې نو یو دم به په ټول ماحول یوه خاموشي خوره شوه اورېدونکي به غوږ غوږ شو او د ټولو توجه به ئې داسې راښکله لکه مقناطیس چې ځان ته وسپنه راکاږي.

د باچا خان د وینا شروع الفاظ به عموماً داسې وو :

زما ورونړو!

دا زهٔ چې تاسو له راغلے یمه او دا ستاسو په مخکښې چې ودرېدلے یمه نو دا ځکه چې تاسو زما عزیزان یئ ـ تاسو زما قام یئ ـ زهٔ تقریر نه کومه ، زهٔ خو تاسو له په جرګه راغلے یم ـ فکر وکړئ ، دا زمونږ څهٔ حال شهٔ !!!!

د باچا خان ټولې خبرې به د شروع نه تر اخره پورې ډېرې ساده او اسانې وې ـ بیان به ئې له حده زیات سپېځلے او صفا وهٔ ـ نهٔ به پکښې پېچ وهٔ او نهٔ څهٔ کږلېچ ، لوستي نالوستي ،زاړهٔ او ځوانان ، ښځې او ماشومان به پرې یو شان پوهېدل ـ ټولو به ورته د زړهٔ غوږونه تکې کړي وو ـ د بابا فکر او پېغام





سره به ئې مینه پېدا شوه ـ د خواخوږۍ جذبه به ئې راپېداره شوه ـ دا ځکه چې د باچا خان خبرو کښې به د زړهٔ مینه او اخلاص وهٔ ـ د هغهٔ په زړهٔ کښې د قام درد وهٔ ـ د قام خدمت ئې عبادت ګڼلو ـ وئیل به ئې " الله پاك ته د چا د خدمت ضرورت نشته ـ د الله خدمت دا دے چې د الله د مخلوق خدمت وکړے شي ".دې اوصافو د باچا خان په ژبه او وینا کښې بې حسابه اثر او تاثیر پېدا کړے وهٔ.

باچا خان به هر موقع دا خبره کړې ده چې :

"زهٔ سیاست دان نهٔ یم ـ خدایي خدمتګار یم " یعنې چل ول او ټګي توري ئې نهٔ کوله ـ د اخلاص او انساني خواخوږۍ دغه جذبه وه چې د باچا خان وینا به د ډېرو ښهٔ ښهٔ تقریرونو نه پس هم ، خلقو تر اخره پورې په ډېره مینه او احترام اورېدله ـ په اورېدونکیو صرف هغه خبرې ترسکونې او ښې لګې چې د طنز او مزاح ، چټني او مالګه مرچکې پکښې ګډ وې ـ دا د تقریر او خطابت په فن کښې لازمي توکي ګڼلے شي ، کهٔ یو سړے لوے عالم ، ستر مفکر او ژور فلسفي وي خو چې د موقعې مناسب د تورقې وشتې حس نهٔ لري ، په شونډو ئې مُسکا نهٔ وي یا په جملو کښې ئې د خندا الفاظ او شګفتګي نهٔ وي نو عام اولس ته به د دهٔ د ذهن دنیا یوه دشته سوراړا ښکاري او ځوك چې په دې صفتونو ښائسته وي نو کلام او بیان به ئې لکه د سپرږدي ګل تر او تازه محسوسیږي.

باچا خان په عام ژوند کښې يو اعتدال خوښ، عاجز خويه او سنجيده انسان وۀ . په بنيادي توګه يو مصلح وۀ . "اصلاح الافاغنه او خدايي خدمتګار تحريك" د انساني خواخوږۍ په بنياد د قام د اصلاح او لاربښودنې ښکاره ثبوتونه دي . باچا خان د قران او اسلام د تعليماتو په رڼا کښې د غلطو پلتو رسمونو او رواجونو ختمولو هاندې هڅې کولې . د خلقو په ذهن کښې ئې بدلون راوستو د حق پېژندلو او حق اخستلو پوهه او احساس ئې ورکولو . دې مقصد او مرام ته د رسېدو د پاره باچا خان د الله تعالىٰ د پېغمبرانو ښودلې لاره خوښه کړې وه . کومه چې د ازغو ډکه ده . خپلو وېناګانو کښې به ئې په خصوصي توګه د حضرت نوح علیه السلام ، حضرت عیسیٰ علیه السلام او د پاك رسول خاتم الانبياء حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او بيا د هغۀ د اصحابو مثالونه ورکول.

فطري خبره ده چې کوم لار ښود او مصلح رهنما د قامي ژوند کشالو او عذابونو سره مخ وي او په تېره تېره د پښتون قام د اصلاح ذمه واري ئې په سر اخستې وي نو د هغۀ لهجه کښې به تريخوالے هم پيدا کېږي او کله کله به له ډېره سوخته خندا هم ورځي نو په خبرو کښې طنز او مزاح هم د دغه قسمه کيفيت په اثر کښې مخ ته راځي او دا ښځي فطري عمل وي . مصنوعي نۀ وي . مزاح ته مونږ د ټوقې يا د خندا معنیٰ ورکولې شو او طنز لکه د "ټك" يا "پېغور" په مفهوم کښې





راتلې شي خو داسې چې اورېدونکے پرې د ازغي د څوکې سوے هم محسوس کړي خو په شونډو به ئې لکه د ګل مُسکا هم خوره وي.

د يو پښتون قامي راهنما په حېث د باچا خان په وېناګانو او خبرو اترو کښې به کله کله څۀ لږ ډېر مزاح او د زورَور طنز رنګونه راخورۀ شول.

زۀ دلته د ليدلو ، اورېدلو او لوستلو واقعو په حوالو د باچا خان وېناګانو کښې څېنې جملې او خبرې وړاندې کوم چې د طنز او مزاح شوخ رنګونه پکښې په شعوري او غېر شعوري توګه ځلېږي خو ارمان چې په ليك کښې ما د باچا خان د لهجې خوند پيدا کولې شوې.

## استحکام او غداري:

د کال ۲۵-۱۹۲۴ زمانه وه . فيلډ مارشل محمد ايوب خان د پاکستان صدر وۀ . باچا خان د علاج د پاره لندن ته لېږلے شوے وۀ . وروستو د ډاکټرانو په مشوره د افغانستان کابل او بيا جلال اباد کښې مېشته شۀ . د پاکستان صدر مردان کښې يو تقرير کښې باچا خان ته "غدار" وئيلي وو . دغو ورځو کښې کابل رېډيو د باچا خان تقرير نشر کړۀ چې زمونږ

پښتونخوا کښې زیات شمېر خلقو په ډېره مینه اورېدلے وۀ۔
باچا خان وئیلي وو:

> ایوب خان ما پسې کلي ته سوال جواب کړے وۀ ، زۀ چې هلته (پاکستان) کښې وم نو دۀ به ما ته کاکا وې۔ ما ورته وې تۀ څۀ غواړې؟ دۀ وې ، استحکام ـــ ما ورته وې استحکام په څۀ راځي ؟ دۀ وې په فوځ، ما وې ـــــ استحکام په فوځ نه په قام......تۀ استحکام غواړې ؟

با چا خان زیاته کړه

> دے ما ته غدار وایي ، یلکه (یا هلکه) د ازادۍ د پاره خو جنګ مونږ کړے دے ، دا پېرنګے خو مونږ د ملك نه شړلے دے ، نو زۀ غدار شوم او تۀ وفادار شوے۔

## شهنشاهئیت او باچا خان:

دا به د کال ۱۹۷۲ء ورځې شپې وې ، د پاکستان پخوانے وزیر اعظم ذوالفقار علي بوټو مردان ته راغلے وۀ۔ د هوتي د نوابانو په ځاے کښې ئې تقریر کړے وۀ چې په ریډیو او ټیلي وژن نشر





شوے وۀ۔ باچا خان پسې ئې یو څو شتیۍ خوشې کړې وې۔ وئیل ئې ، دے ځان ته بادشاه خان وایي ، کلي له ئې نوم شاهي باغ اېښے دے۔ دے شهنشاهئیت غواړي۔ یو څو ورځې پس اخبار کښې د پخواني سیاسي ګوند نېشنل ډیموکرېټك له خوا اخباري خبر راغلے چې باچا خان به د هوتي فرشي پل سره جومات کښې د جمعې د مانځۀ نه پس خلقو ته خطاب کوي او د بوټو صاحب د خبرو جواب به کوي۔ دا خبر د ځینو مشرانو د پاره نا اشنا ځکه وۀ چې باچا خان په خپل ټول ژوند کښې چرې هم جوابي بیانونه نۀ ورکول۔ کله چې د جمعې مونځ وشۀ نو سوئیل طرف ته برانډه کښې د باچا خان د وېنا کولو اهتمام کښې ځاے جوړ کړے شۀ۔ باچا خان په خپله مخصوصه قلاره لهجه کښې بیان شروع کړۀ چې د بوټو صاحب حواله ئې ورکوله نو وې وئیل :

> زۀ خو ستاسو دې وزیراعظم ته پېکر (فکر) وړے یم ، هغه بله ورځ چې دۀ دلته ما پسې خبرې کولې نو ما په کاغذ لیکلې دي۔

(باچا خان د نظر عینکې ولګولې او د جیب نه ئې د کاغذ یوه پُرزه راوېسته) بیا ئې ووې :

> بوټو صاحب وایي ، دے ځان ته باچا خان وایي ، یلکه (یا هلکه) زما نوم عبدالغفار دے ، باچا خان خو راته خپل قام د مینې نه وایي ، بوټو

صاحب بله خبره دا کوي چې کلې له ئې شاهي
باغ نوم ايښے دے، دا شاهي باغ نهٔ دے ، شهي
باغ دے او دا خو زمونږ د تربورانو کلے دے۔
زمونږ کلے خو اتمانزو دے ، دهٔ ته دومره هم پته
نشته۔دے لاځان ته وزير اعظم وايي !!!! دريمه
خبره بوټو صاحب دا کړې ده چې زهٔ (باچا خان)
شهنشاهئيت غواړم ، نو تاسو ما ته وګورئ ،
ما کښې د شهنشاهئيت څهٔ دي ؟ شهنشاهئيت
خو دے غواړي۔

## د قام درد او مينه

د کال ۱۹۷۲ء دسمبر په څليريشتمه نېټه چې د باچا خان په
يو عظيم الشان تاريخي جلوس کښې د افغانستان نه پېښور
ته راوستے شو نو جناح پارک کښې ئې په لکهاو خلقو ته يو ډېر
اوږد او تفصيلي تقرير کړے وو ، د وېنا په مهال کښې ئې له
ډېره سوخته ووې :

ميرې ته چې خدا ے په قار شي نو وزرې ورله
ورکړي او پښتون ته چې خدا ے په قار شي نو
په زړهٔ کښې ورله د قام مينه پيدا کړي ، زهٔ ئې
په دې کار اخته کړے يم۔





## عجيبه ملك:

باچا خان په يوه موقعه (۲۴م دسمبر ۱۹۷۲ء) وئيلي وو:

مونږ په يو عجيبه ملك کښې اوسېږو ، عجيبه
خو په دې دے چې دلته خدمت کول جرم دے او
چرته چې خدمت کول جرم وي هلته د خدمت
خلق نهٔ پيدا کېږي او په کوم قام کښې چې د
خدمت خلق نهٔ وي د هغوي دنيا هم تباه شي او
اخرت ئې هم تباه شي۔

## د کار خبره:

د دې تاريخي تقرير په اخرکښې باچا خان خلقو
ته په ډېره عاجزۍ يو خواست وکړهٔ چې تاسو
کښې کهٔ ما له څوك د کار خبرې له راځي نو
سحر د نهو بجو نه يولسو بجو پورې به ستاسو
خدمت کښې حاضر يم ، د سلام د پاره مهٔ
راځئ۔ سلام وشهٔ ۔ ستاسو د دې مينې او
محبت ډېره شکريه ؛ چې په دې دومره يخنۍ
کښې د لرې لرې نه راغلي يئ او ډېر کړاو مو
کړے دے۔ستاسو ډېره ډېره شکريه۔اوس کهٔ

ما له څوك د كار خبري له راځي نو راتلي شئ ،
"درشنيان" نه

د كار خبره به څۀ وه ؟ د قام او ملك د ابادئ ودانئ او خېر ښېګړي خبره ، ډاكټر محمد يونس بټ (ورځپاڼه جنګ ۱۲م نومبر ۱۹۹۳ء) په خپل كالم "عكس در عكس" كښي ليكلي دي :

> د بي بي سي لندن يو نمائنده خان عبدالغفار خان سره د مركي كولو په غرض ورغلے وۀ ، خان صاحب ورته وي ، ګوره! كۀ تۀ ما سره په پښتو ادب او شاعرئ خبره كول غواړې نو زما څوي غني سره كښېنه، په سياست راسره خبري كوې نو ښه به دا وي چي ولي خان له ورشه او كۀ چري څۀ د كار خبره كول غواړې نو بيا ما سره خبره وكړه۔

## سن باتھ (د نمر پيتاوے)

محترم مفلس دراني (ورځپاڼه وحدت ۱۴م مارچ ۱۹۹۱ء) يوه واقعه ليكلي ده :

> زۀ يو ځل د قلندر مومند صاحب په وېنا باچا خان سره مركي كولو ته لاړم ، دغو ورځو كښي





> باچا خان د كابل سين په غاړه يوي ډاك بنګله كښي نظر بند وۀ ، د ژمي موسم وۀ . زۀ چي ورغلم نو باچا خان كټ كښي پيتاوي ته ناست وۀ . انټرويو چي وشوه نو ما د دې خبر سرخي داسي لګولي وه چي He was taking sun bath ، هغۀ پيتاوے كوۀ۔
>
> په سبا له يوې اردو ورځپاڼي د خبر ترجمه داسي كړې وه ؛ باچا خان په نمر كښي په سين كښي لامبل . باچا خان چي خبر لوستے دے نو ما (مفلس دراني) ته ئې په ټيلي فون غږ كړے وكړۀ:
>
> يلكه ! دا خلق به څۀ وايي چي باچا خان لېونے شوے دے چي په دې يخ ژمي كښي په سين كښي لامبي !!!!؟؟

## غوا:

زما والد صاحب مولانا عنايت الله مرحوم وئيل چي

> د يو لوے اختر په ورځ خاكسار حاجي صاحب ، حاجي عبدالحكيم سره د باچا خان ملاقات له سردرياب ته تلو . چارسده كښي ماښام خسرو خان سره

ایسار شو ـ ډوډۍ مو ورسره وخوړه ـ هلته راسره یو زوړ خدايي خدمتګار ملګرے شۀ ـ مخالفینو باچا خان پسې داسې پروپېګنډې کولې چې په خلور مذهبه به ناروا وي ـ ځینې ساده باده خدايي خدمتګار به پرې هم تېروتل ـ مونږ به د هغوي د پوهولو کوشش کوۀ ـ دغه سپین ږیري په لاره لاره یوه داسې خبره وکړه چې ما له ئې خندا راوسته ـ ما ورته وې سردریاب ته چې ورسو نو پخپله به د باچا خان نه تپوس وکړے او بیا ئې په خپله د باچا خان نه پوښتنه وکړه :

باچا خانه دا رښتیا دي چې تۀ غوا نۀ حلاله وې؟

باچا خان ورته په غور وکتل خو په خلۀ ئې هېڅ ونۀ وئیل ، بزرګ خدمتګار بیا ووې ، باچا خانه! زۀ تهوقه نۀ کوم ـ سم تپوس درنه کوم ، خلق وايي چې دے غوا نۀ حلالوي ـ باچا خان ورته زر جواب ورکړۀ:

یلکه! دا زۀ درته قصاب ښکارم چې غواګانې به حلالوم ـ

## چاربېته:

د کال ۱۹۷۷ء انتخابي هلې ګولې وې ، باچا خان مُلازو کښې یوې جلسې ته تقریر کوۀ؛





یلکه! د ازادۍ جنګ خو تاسو کړے دے، قرباني تاسو ورکړې دي، کورونه ستاسو تباه شوي دي ، قېدونه تاسو تېر کړي دي او سختۍ کړاونه خو تاسو زغملي دي او کۀ تاسو پېرنګے د ملك نه وې اېستلے نو پاکستان به چرته وۀ ـ تاسو دومره نۀ پوهېږئ ، دا ملکونه په چاربېتو جوړېږي ؟

## وېش او اختلاف:

باچا خان په ډېرو موقعو، په خصوصي توګه د پاکستان ورومبۍ دستورسازه اسمبلۍ (فروري ۱۹۴۸ء) کښې:

چې کله د پاکستان د فادارۍ سوګند پورته کوۀ ، دا خبره سپینه کړې وه چې ما د پاکستان نه بلکې د تقسیم (وېش) مخالفت کوۀ او دا مخالفت مې په ډېر اخلاص کړے دے ـ ځکه چې دې سره به د هندوستان دمسلمانانو قوت تقسیم شي او ما چې کومې خطرې محسوسولې هغه اوس دا دي تاسو پخپله هم وینئ خو هر کله چې پاکستان جوړ شۀ او زمونږ صوبه پاکستان

صاحب اول درېو مياشتو کښي دننه او بيا څهٔ موده پس د ټولټاکنو (عام انتخاباتو) کولو لوظونه کول ، حېدراباد ټربيونل مات شوے وهٔ ـ دغو ورځو کښي ښاغلے عبدالولي خان هم دوري کولي او پاکستان کښي به هر ځاے د دوي دروند استقبال کولے شهٔ خو د باچا خان رايي او فکر بل شان وهٔ ، د زېدي عبدالعزيز خان کاکا په حجره کښي ناست وهٔ ـ ديوهنتون طالبعلمانو ترې ګېر چاپېره وو ـ په روانو سياسي حالاتو خبري اترې کولي شوې ، بابا فخر افغان وئيل :

دا نسيم ولي خو ماته لېونے ښکاري ، دوي چي د قامي اتحاد په ستېج تقرير وکړي او زرګونه خلق ورته لاسونه وپړقوي نو دوي وايي ګني مونږ قومي ليډران شو ، بلکه! دا ستېج خو ستاسو نهٔ دے ، د دې ګټه خو به پنجاب ته وځي ـ تاسو ځان له ستېج پېدا کړئ چي ګټه ئي ستاسو جولۍ ته راشي-----

بابا زلمو هلکانو سره په شګفته موډ کښي دا خبري کولي او د اين ډي پي په مشرانو ئي بوڼهٔ نهٔ دوړول نو عبدالعزيز خان کاکا خواله ورغے او په غوږ کښي ئي ورته څهٔ خبره وکړه ـ (مطلب ئي غالباً دا وهٔ چي دا هلکان دي هسي نه----- ستا د خبرو نه بل څهٔ تاثر واخلي) خو بابا خبره صفا کوله ، مسکے شهٔ او ښهٔ په اوچت اواز کښي ئي ورته ووې :





کښي راغله نو اوس به يوائي د خپلي صوبي نه ، د ټول ملك خدمت کوو ـ

د پښتنو ملاڙو کښي عام اولس ته خپله وينا کښي ۱۹۷۷ء ، په ساده باده الفاظو کښي د دغه نظرياتي اختلاف څرګندونه وکړه :

ما خو دوي ته هاغه وخت وئيلي وو چي دا تقسيم غلط دے (د پاکستان د دواړو برخو مغربي او مشرقي پاکستان تر مينځه زر ميله فاصله ده) دا خو لکه چي دوو تربورانو له يو پرتوګ ورکړي ، يو به يوه پښڅه راکاږي او بل به بله پښڅه راکاږي نو خښتګ به ئي وشلېږي ـ نو ولي ، ونهٔ شلېدهٔ څهٔ ؟؟

(په کال ۱۹۷۱ء کښي پاکستان دوه ټوټې شهٔ، مشرقي حصه ترې بېله شوه)

## مړه پيښو :

د کال ۱۹۷۸ء خوا او شا خبره ده ، د بوټو صاحب د حکومت تخته اوړېدلي وه ـ د پي اين اے (پاکستان قامي اتحاد) تحريك د عروج نکتې ته رسېدلے وهٔ خو نتيجه کښي ئي جرنېل محمد ضياء الحق په اقتدار کښي راغے ـ جرنېل

وه .... مرې پیشو! (د مینې لفظ) دا په تا څۀ
شوي دي ؟ تۀ خو خدایي خدمتګار یې ، ستا
خو خپل ستېچ وۀ کنه !!!

په دې خبره عبدالعزیز خان او نور ناست کسان هم شګفته شو.

## شوم‌تیا کۀ سادګي:

د باچا خان په حقله د خلقو یوه لویه مغالطه دا هم ده چې د ے "شوم" د ے. تر دې چې ځینو لویو شخصیتونو هم برناحقه دغه تاثر قائم کړے د ے لکه مولانا ابوالکلام ازاد غوندې شخصیت "انډیا ونز فریډم" کښې د نامعلومه صاحبانو په بیان تېروتے د ے ، په ۱۹۷۷ء کښې مارشلایي دور کښې چې حېدراباد ټریبونل مات کړے شۀ او ملي رهبر عبدالولي خان او د هغۀ ملګري راخلاص شو نو د هرکلي د پاره جوپې جوپې خلق ولي باغ ته ورمات وو. د طورو عبدالمجید خان اېډوکېټ سره ملګرو کښې زما دوست ښاغلے پرویز اقبال سلام او پخېر راغلي ته حاضر شوي وو. دوي اول باچا خان له ورغلل. د سلام نه پس باچا خان یو زلمي ته ووې "په دې مېلمنو چاې وڅښوه" خو دوي ورته ووې چې مونږ چاې ناشته کړې دي. نو بابا ورته ووې چې چاې نه څښئ نو دا مېوې د څۀ د پاره پرتې دي؟ د دې نه واخلئ. دا ستاسو د پاره دي. مجید





خان او ملګرو په ډېره خوشحالۍ یو یو کینو را اوچت کړۀ ، پرویز اقبال وایي زمونږ د پاره خو تبرك وۀ. بیا چې دوي ولي خان سره بره ګړه وکړل او د دوي په لاسو کښې ئې کینوان ولیدل نو مجید خان ورته په خندا کښې ووې "دا مونږ له بابا راکړل" ولي خان وې " ښه بیا خو ګټه د اړولو ده " ټول په خندا شو خو ولي خان ورته بیا په دې حواله د ټوقې وشتې په انداز کښې وضاحت وکړۀ :

بابا چې به چرته په دوره بهر ته لاړۀ نو د کور
بندیانو به ساه واخسته ځکه چې کشر کول د
بابا په وړنا عمل نۀ شي کولے ، د پوټي پوټي
څیز حساب کوي ، کۀ پېنځۀ مېلمانۀ راشي نو
بابا وایي چې د مېلمنو په حساب دي اخلے
پخلے وشي او چې مېلمانۀ د شمېر دي نو بیا
دې دومره کټوو پخولو ته څۀ حاجت د ے. دا خو
فضول خرچي ده.

باچا خان چې د قام اصلاح کوله نو صرف د خلې خبرې ئې نۀ کولې د کفایت شعارۍ او ساده ژوند تېرولو عملي نمونه به ئې پېش کوله. په دې خبره به ئې زور ورکوۀ چې د خپل څادر سره پښې غزوئ.

د چارغولۍ سبزعلي خان د باچا خان کورنۍ په خصوصي توګه عبدالعلي خان او باچا خان سره د بې تکلفه دوستانه

تعلقاتو دعویٰ کوي . طورو کښې زمونږ ځاے ته راغلے وۀ .
وئیل ئې چې د چراګاه یوسف خان صاحب د ښاغلی عبدالولی
خان او د هغۀ د ملګرو په درناوي کښې د مازیګر مېلمستیا
کړې وه . باچا خان بابا هم راغلے وۀ . ماله ورایه سهي کړۀ چې
بابا یو ګلاب جامن لاس کښې نیولے دے او د چایو نه ګوټ هم
کوي ؛ زۀ په تُندۍ خواله ورغلم :

بابا! تاسو هم دا متهایي ګلاب جامن خورئ ؟ بابا ورته ووې نو
ولې زما پرهېز دے څۀ ؟ ښاغلي سبزعلی خان ورته ووې
"مونږ خو دا اورېدلي دي چې د بابا خوراك څښاك
ساګ،سکړك شوملې ، غوټه پیاز او چکۍ ګوړه ده" د دې په
جواب کښې ورته بابا پوره تفصیل بیان کړۀ ،

> چې د قام د اصلاح د پاره تحریك چلوو نو په
> خدایي خدمتګارو به مې سختي کوله . ما ته د
> دوي کمزورۍ معلومې دي . د پېسې درك به
> ورسره نۀ لګي ، د مېلمه دپاره به په قرضو
> سودا راوړي ، کۀ غم وي او کۀ ښادي ، بې ځایه
> خرچونه به کوي . دېګونه به سوارۀ کړي ،
> چرګان او پولاؤنه به پخوي . خپل ځان لوټ کړي .
> خپل بچي خوار کړي او بیا د پولۍ پرق ته
> کښېني او دا جلسې جلوسونه څۀ یوه ورځ خو
> به نۀ وه . کله به یو ځاے ته تلو کله بل ځاے ته





> او څۀ لس او شل به هم نۀ وو ، دا خو به په
> سوونو او زرګونو خلق وو نو ما نۀ غوښتل چې
> دا ټول دې د یو تن یا څو کسانو اوږو بار شي .
> ما به په کلکه وېنا کوله چې خدایي خدمتګاران
> به ځان سره غوټه پیاز وي کۀ سوکړك ، د خپلې
> ډوډۍ بندوبست به پخپله کوي او اوس هم په
> دې عمل کوم چې ساده کار پکار دے

سبزعلی خان ورته ووې:

نو دا اوس تاسو وګورئ دا خو ساده کار نۀ دے . سرۀ کړي
چرګان دي........باچا خان ورته غوړېده ووې :

> یلکه! نو دا یوسف خان خو ددې علاقې خان
> دے ، توان ئې شته . د دۀ پرې څۀ ؟

## دال او پلاو:

په دې موضوع ځان له یو خوندرو بحث کېدے شي . سادګي او
کفایت شعاري ، فضول خرچي او شومتوب جدا جدا فکري او
ذهني رویې دي . زما ورور ښاغلے اسرار د طورو د بغدارې
امیر محمد خان په حواله یوه واقعه بیان کړې ده . دے د
مشهورې شاعرې ادیبې ډاکټر سلمیٰ شاهین او ډاکټر نګار
پلار وۀ . سور سپین ښکلے بنیادم وۀ . په هلکوانه کښې د

خدايي خدمتګارۍ تحريك كښې جېل ته تلې وۀ ، له دې كبله په خدايي خدمتګارو كښې د وړوكي اميرمحمد په نوم يادېدۀ ځكه چې ستر امير محمدخان د ښاغلي محمد اعظم خان پلار "خان لالا" وۀ - د بغدادي امير محمد خان ، د ګوجرو ګړې ميا شاكر الله باچا ، باچا خان سره لاهور ته تلي وو - د ميا محمود على قصوري صاحب مېلمانۀ وو - هلته چې اورسېدل نو باچا خان حسب معمول ميا قصوري صاحب ته يادګيرنه ورکړه چې خان دېر مۀ کړوئ- د ساده ډوډۍ بندوبست وکړئ - هغۀ ورته لاس په نام شۀ خو ميا شاكر الله باچا ورته پټ غوندې ووې - باچا خان دې خوري ساده مونږ له سم انتظام وكړه - ميا صاحب دوي له هم تسلي ورکړه چې فكر مۀ كوئ ، هر څۀ به وشي - باچا خان ئې جدا كمرې ته بوتلو ، اوبۀ ، صابون، توليه ئې ورته كښېښودل چې مونځ اودس او لږ ارام وکړي - څۀ وخت پس باچا خان ته ډوډۍ كښېښودې شوه ، ساده دال ماستۀ وو، باچا خان ورته ووې ، هغو نورو دوو ته هم ووايئ چې راشي - ميا قصوري ورته وايي: هغوي له هلته ډوډۍ يوړلې شوه - تاسو دلته په ارام وخورئ - باچا خان ورته ووې " خبر دے كۀ هغوي نۀ راځي نو زۀ به ورشمه ، مونږ خو يو ځاے راغلي يو - نو په يو ځاے به ډوډۍ وخورو - بيا باچا خان د دالو ركېبۍ او ډوډۍ په لاس كښې نيولې د هغوي كمرې ته ورغے ، هلته سرۀ





کړي چرګان وو، غوښه او پلاو ، فېرني وغېره په مېز پراتۀ وو- باچا خان ورتلو سره ورومبۍ خبره دا وكړه :

نفس درباندې داسې غلبه وكړه چې هر څۀ درنه
هېر شو - تاسو لاځان ته خدايي خدمتګار وايې -

بيا ئې ووې :

په خپله خو راغلئ پلاو چرګانو ته كښېناستئ
نو دا دال خور درته زۀ ښكاره شوم ؟

## عجيبه مصنف:

ځينو انټرويوګانو كښې به چې د باچا خان نه د غوره او خوښ كتابونو او مصنفانو په بابله پوښتنه وشوه او بيان به ئې كوو نو مُسكے به شۀ او صحافيانو ته به ئې په انګرېزۍ كښې ليكلے كتاب " ګولډ اينډ ګنز" په حواله وئيل :

تاسو به دنيا كښې داسې مصنف هډو ليدلے نۀ
وي چې په خپل كتاب ئې پخپله پابندي لګولې
ده -

يادګيرنه:

دا مضمون ما د نوي سره ترتيب کړۀ خو دې كښې ما بيا هم د باچا خان د كتاب " زما ژوند او جدوجهد" څخه استفاده نۀ ده کړې - باچا خان چې خپل كتاب كښې د جېل د سختيو،

خوراك څښاك د انتظامي معاملو د قېديانو د رويو ، د يو قېدي د لباس پوشاك ، د عدم تشدد په فلسفه د عمل كولو او د صبر استقامت د مظاهرو ذكر كوي نو دې كښې هم د بابا د شګفته مزاح او ځاے په ځاے د خوږ او تېرهٔ طنز مثالونه شته دے خو پكار دي چې دغه كتاب لوستونكي پخپله ولولي.
و ما توفيقي الا بالله





ميا وكيل شاه فقير خېل

# د باچا خان تحريک او پښتو ادب

د پښتونخوا په دې سيمه كښې د پښتنو يو څو تحريكونه د وخت د تقاضوپه سبب راولاړ شوي وو. د دغه تحريكونو مقصد او نصب العين يو شان وو. هغه دا چې پښتانهٔ په لساني ، مذهبي ، سياسي، شعوري ، ثقافتي او تمدني لحاظ سره يو ځانګړے لوړ مقام لري او دوي ته دې هم دغه مقام حاصل شي خو د دغه مقام حاصلولو د پاره په دغه لار كښې استعماري او جابر قوتونه خنډان وو. دغه تحريكونو كښې د بايزيد پير روښان تحريك، د ستر ننګيال خوشحال خان خټك تحريك او د ستر فخر افغان باچا خان تحريك په نظر راځي. د دې درې واړو تحريكونو كړې د تاريخ مطالعه كوونكيو ته په قامي او سياسي توګه د يو بل سره تړلې ښكاري خو دلته دا وضاحت ضروري ګنم چې د بايزيد روښان تحريك په اول كښې صوفيانه ، مذهبي او اصلاحي تحريك وهٔ چې بيا ئې ورستو د قامي او سياسي تحريك رنګ واخستهٔ. بايزيد روښان او ستر خوشحال خان بابا دواړه د هغه

وخت استعماري او پښتون دښمن قوت مغل سره په جنګ مخ وو. ستر خوشحال خان بابا خو د افغان ننګ او پت ژړلو ځکه ئې نعره کړه :

د افغان په ننګ مې وتړله توره
ننګيالے د زمانې خوشحال ختك يم

خو د دې دواړو تحريکونو سره سره په هغه وخت کښې د پښتو ادب دوه مکتبونه وجود کښې راغلل ، دواړو مکتبونو په خپل ژور علمي انداز کښې د پښتو ادب او ژبې خدمت په فراخه توګه کړے دے او پښتو ادب ته ئې ډېر څۀ ورکړي دي. د روښانيانو ډلې د صوفيانه شعري ادب خورولو او وده ورکولو کښې لوے کردار ادا کړے دے ، دغه مکتب د مرزا خان انصاري ، دولت خان لواني ، علی محمد مخلص او ارزاني غوندې د لوې پائې شاعران پيدا کړل. د روښاني مکتب لويه کارنامه د پښتو ژبې رسم الخط ايجادول وو او بايزيد روښان هم د دغه رسم الخط ابتدا د خپل کتاب خيرالبيان په ليکلو سره کړې وه او دغه شان خوشحال بابا هم د خپل مکتب سرخېل وۀ او دغه مکتب پښتو ادب ته په تاريخي ، تحقيقي ، نثري او شعري لحاظ سره لوړ مقام ورکړے دے او د پښتو ژبې ليك لوست ئې د وخت د تقاضو





مطابق په نوي رسم الخط سره اسان کړے دے. دغه مکتب د اشرف خان هجري ، سکندر خان ختك، ګوهر خان ختك، صدر خان ختك ، عبدالقادر خان ختك او افضل خان ختك غوندې لوے لوے شاعران او عالمان پيدا کړي وو او تر اوسه دغه مکتب د پښتو ادب ګلستان ښېرازه کړے دے. زما د دې بحث مطلب دا دے چې د پير روښان او خوشحال خان بابا تحريکونه سوچه قامي او سياسي وو. دې تحريکونو ته مونږ په خصوصي توګه ادبي تحريکونه نۀ شو وئيلې بلکې دا وئيلې شو چې د دغه تحريکونو په وجه د پښتو ادب دوه مکتبونه په وجود کښې راغلل او د دغه ادبي مکتبونو په دغه تحريکونو کښې د مخکښې بوتللو لوے لاس وو.

اوس راځو د شلمې صدۍ يو ډېر لوے منظم تحريك طرف ته چې مونږ ورته تعليمي، ادبي، قامي ، سياسي او شعوري تحريك وئيلې شو. د دغه تحريك محرك ستر پښتون مبارز فخر افغان باچا خان دے چې د جهالت په تيارو کښې پروت د بې علمه، بې اتفاقه او بدحاله پښتون په حالت غمژن او ويرژن کېږي او د دغه ارمان خاکه ئې اروابناد فضل محمود مخفي د دې الفاظو سره مخکښې کوي :

زۀ د قوم په غم ژوندے يم دغه غم به په زړۀ تل وي
په ځيګر سوے له دې يم سر کښې اور مې دې نه بل وي

خدایه داسې ژوندون راکړې چې مې زړهٔ کښې غم د قام وي
په دې غم کښې لېونے وي دغه غم په ما بارتل وي
خدایه داسې وخت به راشي چې زمونږ جهاز به هم وي
لکه باد به په هوا شي په ترخو اوبو به سم وي
زهٔ به خپل جرنېل پسې یم په دشمن به داو کول وي
په ارمان ارمان له دې یم خدایه داسې وخت به کل وي

باچا خان یو سوچ خپل کړو، کهٔ چرې پښتون په تعلیمي او علمي لحاظ سره معمور شي نو هله به د خپل لساني، سیاسي ، شعوري، ثقافتي او تمدني حالت نه خبر شي او د جهالت د تیارو نه به بهر شي او پښتون قام به د ترقۍ په لار مخکښې لاړ شي او دغه قلم او کتاب به د دهٔ د روښانه ژوند ضمانت وګرځي۔

په دې باره کښې باچا خان د خپل کتاب " زما ژوند او جدوجهد " کښې لیکي :

زهٔ په مشن سکول کښې د خپل هېډ ماسټر او د هغهٔ د ورور ډاکټر وګرم نه ډېر متاثره وم ـ د هغوي قربانیو راباندې ډېر اثر کړے وهٔ ـ زما هم دا خیال پېدا شوے وهٔ چې د دې قام او وطن خدمت مې وکړې ـ په دغو ورځو کښې زمونږ د قام د جهالت په وجه ډېر بد حالت وهٔ ـ نهٔ د





حکومت له خوا څهٔ انتظام وهٔ او نهٔ د قام له خوا ـ د تعلیم کولو هېڅ انتظام نه وهٔ او کهٔ په کوم کلي کښې به پرائمري سکول وهٔ هغې ته به هم ملایانو څوک نهٔ پرېښودل نو ما غوښتل چې د پښتنو د بچو د تعلیم د پاره په ملك کښې اسلامي مدرسې جوړولو کوشش وکړم او خپل ژوند به په دې خدمت کښې تېروم ـ په ۱۹۱۰ء کښې ما او مولوي عبدالعزیز صاحب یوه مدرسه په اتمانزو کښې جوړه کړه او د نورو مدرسو جوړولو د پاره مو په نورو علاقو کښې دوره شروع کړه ـ د خلقو توجه مې د علم طرف ته کړه او د پښتنو په زړونو کښې مې د علم د ضرورت احساس پېدا کړهٔ او دغه شان مو ورو ورو په مختلفو علاقو کښې د مدرسو جوړول شروع کړل په لږ وخت کښې ډېرې مدرسې جوړې شوې۔

تاریخ ګواه دے چې هر تحریك یو نصب العین او مقصد د پاره شروع کېږي نو په مخالفت کښې ئې خامخا څوك راوچتېږي نو دغه شان هم په دغه ورځو کښې د مدرسو جوړولو مخالفت کښې د هغه وخت ملایان، پیران او خانان راوچت شول او مخالفت ئې شروع کړهٔ او په خپل تقریرونو کښې به ئې خلقو ته وئیل :

سبق د مدرسې وايي
د پاره د پيسې وايي
په جنت کښې به ئې ځاے نهٔ وي
په دوزخ کښې به غوپې وئ

خلقو چې به دا واورېدل نو خپل بچي به ئې منع کول.
په دغه حقله باچا خان وايي:

په دغه وخت کښې قام د ملايانو او باباګانو په جال کښې ګېر وهٔ او د هغوي د اثر لاندې د بل چا اثر ئې لا نهٔ وهٔ منلې او يو قام هله د چا اثر قبلوي چې اثر والا پکښې پېدا شي کله چې ملايانو زمونږ د مدرسو مخالفت شروع کړهٔ نو د خپلو مدرسو د پاره مونږ د ترنګزو حاجي صاحب سرپرست وټاکهٔ نو په دې طريقه مونږ څهٔ نا څهٔ د ملايانو د تخريب نه بچ شو. د حاجي صاحب په وجه مونږ ته په دې کار کښې ډېره کاميابي حاصله شوه. (زما ژوند او جدوجهد صفحه ۷۹)

هر کله چې انګرېز په دې خبر شهٔ چې پښتون قام په تعليمي لحاظ پرمختګ غواړي او دغه تعليمي پرمختګ سره به په پښتون قام کښې انقلاب راشي او دغه انقلاب زمونږ د پاره د يو لوے طوفان ذريعه وګرځي او دا يو داسې قام دے چې زمونږ د مقابلې طاقت او جرات لري نو ولې دې مونږ د





دوي دغه منصوبې ختمې نهٔ کړو او هم په دې کوشش کښې لګيا شو. د دغه مدرسو جوړولو تحريك ناکامه کولو د پاره ئې هر قسم طريقې خپلې کړې. په دې دوران کښې د خلافت تحريك شروع شهٔ او د هجرت کولو اواز پورته شهٔ نو د دې سيمې پښتانهٔ هم افغانستان ته په هجرت لاړل. په دغه کښې باچا خان هم په هجرت لاړهٔ چې پنځلس کاله پس راغے نو وايي:

د افغانستان او ازاد قبائلو چې مې حالت وليدهٔ او پنځلس کاله مې په هندوستان قبائلو او افغانستان کښې غرزې پرزې وکړې نو په دې نتيجه ورسېدم چې انقلاب د منډې کار او دومره اسان څيز نهٔ دے. انقلاب د سرې سينې کار دے. انقلاب علم او پوهه غواړي ، انقلاب عالمان او پوهان غواړي. د انقلاب د پاره د اشخاصو ضرورت دے. تهٔ ګوره چې زمونږ جذباتي ملګري په څومره جوش راوتلي وو ، ټول لاړل خوارهٔ وارهٔ شول نو کښېناستم د ځان سره مې ښهٔ فکر وکړهٔ ، په دې نتيجه ورسېدم چې زمونږ د قام نهٔ تجارت خوا ته توجه شته ، نهٔ د صنعت خوا ته ، نهٔ د زراعت خواته او نهٔ د تعليم خواته. د بلې خوا په رسمونو رواجونو کښې تر غوږو ډوب دے. په خانه جنګو اخته دے. داسې قام انقلاب نهٔ شي

کولې او دا قام د دې بلاګانو خلاصول په کار دي
چې سياسي شعور پکښې پېدا شي او دا کار يوه
پُر امنه فضا غواړي. تر دغه وخته پورې زهٔ په دې
عقيده وم چې دا ټول کارونه انقلاب غواړي.
تشدد راته د انقلاب نژدې او د کاميابۍ لار
ښکارېده خو د تجربې نه وروستو راته معلومه
شوه چې د جنګ په وخت کښې اسونه نهٔ تيارېږي
نو ځکه مې اراده وکړه چې خپل کلي ته واپس
کېږم او د عدم تشدد د اصولو په بنا به کار کوم،
اول به د انقلابي اشخاصو د تعليم او تربيت د پاره
قومي مدرسې جوړوم نو ځکه اتمانزو ته راغلم.
زهٔ چې د هجرته بېرته راغلم نو د هغو مدرسو
بېرته جاري کولو کوشش مې کولو چې پېرنګيانو
د جنګ په زمانه کښې بندې کړې وې. (زما ژوند
او جدوجهد، مخ ۱۸۲ - ۱۸۳)

باچا خان دغه تعليمي او اصلاحي تحريك په منظم ډول
مخکښې بوتلل غوښتل نو په ۱۹۲۱ء کښې د انجمنِ اصلاح
الافاغنه په نوم ټولنې ئې جوړ کړهٔ چې د هغې مقصد او نصب
العين د پښتنو د غلطو رسمونو، رواجونو د اصلاح کولو د
تشدد نه د منع کولو او پکښې د قامولۍ د مينې او محبت
پيدا کول وو او هم په دغه کال ۱۹۲۱ء کښې ئې د انجمن د





سپورې لاندې په اتمانزو کښې د ازاد سکول بنياد کښېښودهٔ.
د دې سکول په بنياد کښېښودو کښې د باچا خان سره قاضي
عطاء الله، ميا احمد شاه، حاجي عبدالغفار خان،
محمدعباس، عبدالاکبر خان اکبر، تاج محمد خان، عبدالله
شاه او خادم محمد اکبر ملګري وو.
په دې حقله باچا خان په خپل کتاب زما ژوند او جدوجهد کښې
ليکي:

مونږ د خلقو د پوهولو او پکښې د مينې محبت،
ورورۍ او قامولۍ د پيدا کولو د تعليم شوق د
پيدا کولو او د قام نه د غلطو رسمونو رواجونو
ختمولو او د قامي مدرسو د پاره د مرستې
حاصلولو په غرض کلي په کلي کور په کور دورې
شروع کړې او په خلقو کښې مو د ژوند احساس
پيدا کړو. زما د دورو پېرنګي سره ويره پيدا شوه.
سر هملټن زمونږ د صوبې چيف کمشنر وهٔ، هغه
زما باباجان وغوښتهٔ، ورته ئې ووې چې دا ځوے
دې څهٔ کارونه کوي، ټول خلق لمسوي. منع ئې
کړه. د دهٔ سکتر سعدالله خان د عمرزو خان وهٔ.
هغهٔ مې باباجان ته وئيلي وو چې تهٔ ګوره چيف
کمشنر ستا څومره احترام کوي. څومره چې ستا
مني هغه هومره د چا نهٔ مني. تهٔ د دهٔ دخوشحالۍ

د پاره خپل ځوے منع کولې قدرې نۀ شې ـ بابا
مې راغے، زۀ ئې کښېنولم ، راته ئې وئيل چې
ځويه د دې کارونو نه لاس واخله ، ځان دې په
مصيبت اخته کړے دے ـ سرکار هم خفه کېږي
چې نور ځوك ئې نۀ کوي تۀ ئې څۀ کوې ـ ما ورته
وې چې ښه ده بابا چې تۀ وايې مۀ کوه نۀ به ئې
کوم، ډېرو خلقو چې مونځ پرېښے دے نو زۀ ئې هم
پرېږدم خو تۀ به بيا ما ته نۀ وايې چې مونځ ولې نۀ
کوې ؟ بابا مې راته ووئيل چې مونځ خو فرض
دے ـ ما ورته وې بابا دا علم خو هم فرض دے ـ
بابا مې وې ښه ده څه کوه او بيا چيف کمشنر ته
ورغے ورته ئې ووئيل چې صاحبه مونږ ستاسو د
خوشحالۍ دپاره خپل دين نۀ شو پرېښودې ـ (زما
ژوند او جدوجهد مخ ۱۵۸ ـ ۱۸۲)

د باچا خان دا ارمان وۀ چې د پښتون بچي دې د زمانې د
نوي تعليم او د خپل ثقافت ، ژبې ، تاريخ نه واقف شي نو ځکه
باچاخان مغربي او مشرقي علوم دواړه د پښتنو بچو ته په دغه
مدرسو کښې ورکول غوښتل چې پښتون به د تعليم په وجه
اتفاق او وروروليي مينه وپېژني او د ټوپك په ځاے به د قلم او
کتاب په ذريعه خپل مرام ته ورسي ـ پېرنګے په خبره پوهه شو
چې دا تحريك اوس د ختمېدو نۀ دے او باچا خان او د هغۀ



باچاخان عهد ساز شخصيت

ملګري په خپلو ارادو کښې کلك دي او دوي مونږ هېڅ کله هم
د خپلې لارې نه اړولې نۀ شو ـ دوي په پېسو اخستې نۀ شو او دا
تحريك په خان ، مُلا ، پير باندې نۀ ناکامه کېږي نو بله لار
ورسره نه وه نو باچا خان ئې سره د انجمن اصلاح الافاغنه د
ملګرو د دفعه 40 FCR لاندې په دسمبر ۱۹۲۱ء کښې ګرفتار
کړل نور ملګري ئې خوشې کړل خو باچا خان ئې درې کاله قيد
کړۀ او په جېل کښې ورسره ناروا سلوك وشۀ او تکليفونه به ئې
ورکول چې دې به د خپلې خبرې نه واوړي خو دغه د غېرت او
پت ډك پښتون چرته د خپلې خبرې نه اوړېدۀ ـ مرګ ته تيار وۀ
خو دپښتون غلامي ئې نۀ منله ـ د انګرېز دا خيال وۀ چې د باچا
خان نيولو سره به د مدرسو جوړولو دغه تحريك او انجمن
اصلاح الافاغنه به ختم شي خو دې تعليمي تحريك په کلي کښې
د مدرسو جال خور کړے وۀ او مرکزي مدرسه د اتمانزو ازاد
هايي سکول وۀ او بيا هغه وخت راغلو کوم چې فخرِ افغان باچا
خان سترګې په لار وۀ ، د دې مدرسو په ذريعه په هلکانو کښې
د ديني ، مذهبي ، تاريخي او سياسي شعور پيدا شو او هم دې
مدرسې د ماسټر عبدالکريم غوندې پوهه عالم، اديب، شاعر
او دانشور پيدا کړۀ او هغه به دغه تحريك کښې د خپل دماغ ،
قلم او ژبې په ذريعه جوش او ولوله پيدا کوله ـ دې مدرسې د
عبدالولي خان غوندې يو بې باکه جرې ستر سياستدان پيدا
کړۀ ـ دې مدرسې د عبدالغني خان غوندې د لويې پاې شاعر،

ادیب ، فلاسفر پېدا کړۀ ـ دې مدرسې د عبدالروف قربان
غوندې شاعر او سیاستدان په درګۍ ملاکنډ کښې پېدا کړۀ ـ
دې مدرسې د سعادت خان جلبل په شان ملي شاعر پېدا کړۀ
چې تر مرګه د باچا خان لمن ئې نۀ وه پرېښې او دغه شان په
صوابۍ ، نوښار، مردان ، کوهاټ ، بنو ، ډېره اسماعیل خان ،
هزاره او قبائلي ایجنسو کښې د دې مدرسو نه چې څومره
هلکان فارغ شوي وو هغوي د خپلو تقریرونو ، نظمونو ،
تحریرونو په ذریعه اودۀ قام راویښول شروع کړل او دغه شان په
پښتنو کښې د باچا خان د زړۀ ارمان په دمه دمه پوره کېدۀ او
پښتون قام د علم د رڼا لیتکي بلول او په مخکښې تګ ئې
کولو لکه څنګه چې وئیلي کېږي چې د هر تحریك په شا د هغه
ژبې د ادب لاس وي او دغه ادب د اجتماعي فکر ترجمان شي
او بیا د هغه ژبې قام ته د خپل منزل لارې ښایي او په دغه لارو
بیا هغه قام یون کوي او په دې هرڅۀ کښې د ادیب او شاعر ،
عالم ، پوهاند ، دانشور لاس وي او دغه وجه وه چې دغه
مدرسو کښې لوستونکیو هلکانو ته د میا احمد شاه ، مولوي
محمد اسماعیل ، خادم محمد اکبر ، تاج محمد تاج ، حاجي
عبدالغفار خان ، عبدالاکبر اکبر ، محمد عباس خان غوندې
پوهانو ، عالمانو ، ادیبانو ، شاعرانو رهنمایي او د استاذۍ
شرف حاصل وۀ ـ د باچا خان دې هلو ځلو سره پښتون راویښ
شوۀ ، خپل اقدار ئې وپېژندل ، د خپلې ژبې ، ثقافت او تاریخ نه





خبر شوۀ او د انګرېز نه ئې د ازادۍ مطالبه وکړه ـ باچا خان پوهه
شوۀ چې زما حکمتِ عملۍ رنګ راوړۀ ځکه چې هغه د
مخکښې نه د عدم تشدد لار خپله کړې وه ـ د ټوپك په ځائے د
قلم نه کار اخستۀ او د قلم او کتاب په ذریعه ئې پښتون قام
راویښ کړۀ ـ باچا خان او د هغوي ملګري په دې پوهېدل چې د
دې تحریك د کامیابۍ انحصار په خلقو کښې جوش جذبه
ولوله او غورځنګ به هله راپېدا کېږي چې زمونږ د تعلیمي
تحریك په نتیجه کښې جوړو شویو مدرسو کوم عالمان ،
پوهان، شاعران ، ادیبان ، دانشوران، فنکاران او سیاستدانان
پېدا کړي هغوي دې کلي په کلي کور په کور حجره په حجره او
جومات په جومات وګرځي او د خپلو ملي او قامي انقلابي
شعرونو ، لیکونو او تقریرونو په ذریعه خپل پیغام پښتنو ته
ورسوي او هم دغه شان دې ثقافتي ، ادبي جرګې او تنظیمونه
قائم کړي ـ انجمن اصلاح الافاغنه دا فېصله وکړه چې هر کال
به د دې انجمن د سپورې لاندې کلیزې جلسې کولې شي ، په
دغه جلسو کښې به مشاعرې او ډرامې هم کېږي او په دې سره
به د پښتو ادب او ثقافت ارتقا ومومي ـ د دې فېصلې په رڼا
کښې انجمن اصلاح الافاغنه په اپرېل ۱۹۲۷ء کښې د یو
طرحي مشاعرې او ډرامې اهتمام وکړۀ او کومو شاعرانو چې
ښه نظمونه وئیلي وو هغوي ته ئې انعامونه او تمغې هم مقرر
کړې ـ د دغه اولنۍ مشاعرې طرحه وه :

"کهٔ زلمي چرې په خپل وطن قربان شي "

په دې مشاعره کښې اول انعام ارواښاد عبدالخالق خليق صاحب د سرو زرو تمغه واخسته، دوېم انعام ارواښاد فضل محمود مخفي صاحب د سرو سپينو ګډه تمغه واخسته او درېم انعام د کوهاټ مولانا ګل احمد صاحب ته د سپينو زرو تمغه ورکړې شوه ـ د ارواښاد خليق صاحب د نظم څو شعرونه په دا رنګ وو :

د سرحد صوبه به هم يو ګلستان شي
کهٔ زلمي چرې په خپل وطن قربان شي
چې د خپل وجود اختيار ئې لاس کښې نهٔ وي
په تش نوم به څهٔ امير شي څهٔ به خان شي
هېڅ مشکله ازادي نهٔ ده خليقه
خو کهٔ څوک د اتمانزو په پل روان شي

او دغه شان په دغه جلسه کښې د عبدالاکبر خان اکبر ليکلې شوې ډرامه "درې يتيمان" په نوم ستېج شوې وه ـ خان عبدالولي خان په دې ډرامه کښې د مشر يتيم کردار ادا کړے وهٔ ـ عبدالولي خان په خپل کتاب " باچا خان او خدايي خدمتګاري " کښې د دې ډرامې په حقله ليکي :

دا د يو غريب زميدار د کورنۍ قيصه وه چې هغه عاجز د ماليې د ورکولو نهٔ وهٔ نو په هغې





کښې ئې کور تالا شوے وهٔ او هغه زندان ته ليږلے شوے وهٔ ـ د هغهٔ نه وروستو دوه ماشومان بچي پاتې شوي وو ـ زهٔ پخپله په دغه ډرامه کښې وم او د مشر يتيم کردار مې په غاړه وهٔ چې زمونږ کور تالاشو ، پلار رانه پوليس د ملك په ښودنه بوتلو نو يو ساعت پس زما دا کشر ورور ما ته په ستېج په ژړا شو ـ وې وږے يم ، ستېج ته مخامخ په زرګونو خلق ناست وو ، په دې ډرامه کښې بالکل بوخت، دې هلك چې ما ته په دوېم ځل ووې چې لالا زهٔ وږے يم نو په دې مخامخ ناستو تماشګيرو نه يو بوډا راپاڅېدهٔ ، نېغ ستېج ته راغے، ما چې ورته وکتل نو سترګې ئې د اوښکو ډکې وې ، هغه ئې د پټکي په پلو اوچې کړې ، د ترخ د جېب نه ئې څهٔ راوېستل او ما له ئې په لاس کښې کښېښودل او ډېره په تسله ئې ما ته ووې چې بچے خفه کېږه مه ، دا واخله او خپل دې ماشوم ورور له پرې ډوډۍ واخله ، ما چې وکتل نو هغهٔ زما په لاس کښې يوه روپۍ او شپږ انې پرېښې وې ـ

(باچا خان او خدايي خدمتګاري مخ ۳۷۷)

دغه شان د پښتونخوا په دې سیمه دغه اولسي مشاعره اولنۍ مشاعره او دغه ډرامه "درې یتیمان" اولنۍ ستېج ډرامه وه چې اعزاز ئې دغه انجمن ته حاصل دے.

د ګران پوهاند ډاکټر همایون هما صاحب د وېنا مطابق:

> رضا همداني "درې یتیمان" ته د پښتو ادب وړومبۍ تسویدي ، عملي او منظمه ډرامه وئیلې ده . (پښتو مجله ،درې میاشتنۍ . جولايي، ستمبر ۲۰۰۷ء صفحه ۵۲)

په کال ۱۹۲۸ء کښې د اپرېل په یویشتمه نېټه په کلیزه دستوره کښې په اتمانزو کښې یوه بله طرحي مشاعره د حاجي عبدالغفار د صدرات لاندې وشوه چې طرحه ئې دا رنګه وه :

"کۀ دې خیال د ازادۍ د خپل وطن شي"

هم په دغه جلسه کښې یوه بله ډرامه د عبدالاکبر خان اکبر لیکلې د "تر بور" په نوم ستېج شوې وه ، دغه هم یوه اصلاحي ډرامه وه ؛

د دې جلسې باره کښې عبدالخالق خلیق صاحب په خپل کتاب " زۀ او زما زمانه" کښې لیکي:

> په دې کال کښې چې موسم وۀ د بهار
> صدارت کښې د حاجي عبدالغفار
> اتمانزو کښې جلسه وشوه عالیشانه
> عالمونه وو راغلي له هر خوا نه





> د تېر کال په شان ډرامه پکښې هم وشوه
> د پښتو مشاعره پکښې هم وشوه
> طرحه دا وه کۀ د چا یاده تر نن وي
> "کۀ دې خیال د ازادۍ د خپل وطن وي"
> کوم یو نظم چې له ټولو وۀ بهتر
> هغه شمېر شو د خادم محمد اکبر
> دوېم نظم د تورسم کاکا حساب شۀ
> د شېرپاو فضل واحد درېم کامیاب شو
> (زۀ او زما زمانه ، صفحه: ۴۲)

د دغه ډرامې باره کښې سید صابر شاه صابر په خپل کتاب " د رڼاګانو محفلونه" کښې لیکي :

> په کال ۱۹۲۸ء کښې د ازاد سکول په کلیزه غونډه کښې په اتمانزو کښې بله ډرامه هم د عبدالاکبر خان اکبر د "تربور" په نوم د ستېج په سر وښودلې شوه . دې ډرامې اصلاحي اړخ لرلو . د دې ډرامې اصلي کاپۍ په ۱۹۳۰ء کښې هغه وخت د مینځه لاړې چې د عبدالاکبر خان اکبر د کور تلاشي انګرېز سرکار وکړه او هغه "تربور" نومې ډرامه ئې هم د هغۀ د نور ډېر منظوم کلام سره په خپله قبضه کښې واخسته.

(د رڼاګانو محفلونه، د ادبي جرګو مرکو تاریخ،
مخ ۴۴)

په ۲۱م اپرېل ۱۹۳۰ء په اتمانزو کښې یوه ډېره درنه جلسه وه چې د صوبې د ګُټ ګُټ نه ورته پښتانۀ راغلي وو. په دغه جلسه کښې د انجمن اصلاح الافاغنه او د خدايي خدمتګارو جرګې الحاق وشۀ. په دغه جلسه کښې یوه درنه مشاعره هم شوې وه چې په کښې تعداد کښې شاعرانو په کښې ګډون کړې وۀ. د دې طرحي مشاعرې طرحه دا رنګه وه:

جنګ د ازادۍ له همېشه زلمي وتلي دي

د دې مشاعرې په حقله احمد کاکا په خپل کتاب "خدايي خدمتګاري" کښې لیکي:

> شپې له مشاعره وه، د ټولې صوبې نه شاعران راغلي وو. قابلِ ذکر کسان پکښې دا وو؛ ګل احمد د مرغز، تورسم د دوه سرو، فضل واحد ملا د شېرپاو، حبیب الله کاکا د ترنګزو، سیدرسول رساد بدربښو، عبدالاکبر اکبر د عمرزو، عبدالخالق خلیق د ماڼکي، خادم محمد اکبر د چارسدې، میا شاکرالله د نوښار، نصر الله د اتمانزو او نور هم ډېر وو خو ماته ئې نومونه نۀ دي یاد. د مشاعرې طرح دا رنګه وه:
>
> "جنګ د ازادۍ له همېشه زلمي وتلي دي"

د مرغز ګل احمد په دې طرح دا نظم وئیلے وۀ:





جنګ د ازادۍ له همېشه زلمي وتلي دي
را به ورې غونچې د ګلو نن پرون کښې تلي دي
باز کۀ د غماز په منګل ناست دے هېڅ پروا نشته
مونږ د زړۀ په غوښو باتوران ورته ساتلي دي
نۀ کوي تعلیم د ازادۍ پښتونه روند شولې
تا د غلامۍ په مدرسه کښې څۀ لوستلي دي
جنګ د ازادۍ له همېشه زلمي وتلي دي
رابه ورې غونچې د ګلو نن سبا کښې تلي دي
نخښنه د مراد زمونږ به درنګ ساعت له ولګي
مونږ ورله خپل کور د اتفاق ګولۍ ساتلي دي
مۀ کوه غفلت پښتونه نور اوس وینښ د خوبه شه
څۀ رنګ چې الفاظ د ګل احمد له خلې وتلي دي
جنګ د ازادۍ له همېشه زلمي وتلي دی
رابه ورې غونچې د ګلو نن پرون کښې تلي دي

دا نظم ګل احمد او فردوس اورلے وۀ. د دوارو اوازونه ډېر ښکلي وو. مشاعره تر ډېره وخته پورې جاري وه. د دې د پاره خلیق صاحب، خادم صاحب او تورسم دوي مقرر وو چې نمبرې ورکړي. دوي ګل احمد له اول، فضل واحد ملا له دوېم او تورسم له درېم نمبر ورکړۀ. په انعامونو کښې د

چاندۍ تمغې، نومونه ورباندې ليکلي وو ـ دې
مشاعرې خلق داسې کړل لکه چې په اور تېل
واچوي.
(خدايي خدمتګار تحريك وړومبے ټوك، احمد كاكا.
صفحه: ۱۸۷، ۱۸۶، ۱۸۵)

عبدالخالق خليق په خپل کتاب "زۀ او زما زمانه" کښې د دې
مشاعرې په باره کښې ليکي :

په شلم او يويشتم مياشت د اپرېل
اتمانزو ته خلق راغلل ډېر په سېل
سالانه جلسه وه بيا د انجمن
ورته راغلل عالمونه د وطن
پکښې وشو قسماقسم تقريرونه
رنګارنګ هم پکښې وشو تجويزونه
د شپې وشوه ښۀ درنه مشاعره
ګل احمد صاحب ته ورکړې شوه تمغه

د انجمن د کليزو مشاعرو او ډرامو نه علاوه نورې
مشاعرې او ډرامې د انجمن له اړخه شوې دي لکه په ۱۹۳۰ء
کښې د عبدالخالق خليق ليکلې ډرامه "د خدايي خدمتګار"
په نوم د فخر قوم ميا صاحب په خواهش په زيارت کاکا





صاحب کښې په يوه جلسه کښې سټېج شوې ده ـ د دغې
ډرامې هيرو د خليق صاحب ورور عبدالمالك وۀ ـ
په دې باره کښې ګران پوهاند ډاکټر محمدهمايون هما
صاحب درې مياشتنۍ پښتو جولايي ـ ستمبر ۲۰۰۷ء ، په
خپله يوه مقاله "ښکلا" کښې ليکي :

د پښتو اولنۍ ډارمې "درې يتيمان" نه پس چې
کومې ډرامې زمونږ مخې ته راغلې هغه د رضا
همداني د وېنا له مخه د امير نواز خان جليا
"درد" (۱۹۳۰ء)، د عبدالخالق خليق "خدايي
خدمتګار" (۱۹۳۰) او شهيده سکينه او د فضل
رحيم ساقي "سپېرۀ مرګے" (۱۹۳۵ء):

او هم په دغه مقاله کښې ډاکټر پروفېسر هما صاحب بل ځائے
ليکي:

د پښتو د وړومبۍ طبعزادې ډرامې "درې
يتيمان" مصنف عبدالاکبر خان اکبر د "جونګړه"
په نامه خپله دويمه ډرامه په کال ۱۹۴۵ء کښې
ليکلې وه چې عمرزو او شاهي باغ کښې سټېج
شوه او په کال ۱۹۴۶ء کښې چاپ کړې شوه ـ په
جونګړه کښې د اولس د معاشي بدحالۍ او د
شتۀ منو د لاسه د هغوي د تريخ ژوند نقشه
راښکلې شوې وه او ورسره قام ته د سياسي شعور

يو درس هم په کښې موجود دے ـ (درې میاشتنۍ پښتو ، جولايي ، ستمبر ۲۰۰۰)

باچا خان چې دپښتون قام د پوهې ، علم، تعليم ، د خپلې ژبې ثقافت، تاريخ نه د خبرېدو او په عملي شکل کښې راوستولو د پاره کومه حکمت عملي خپله کړې وه هغه په هغې د کاميابۍ په طرف تګ کولو روان وۀ او کاميابي ئې موندله ـ هغه په دې نتيجه اورسېدۀ چې ما کوم تحريك شروع کړے دے نو په پښتو کښې د دې تحريك د کاميابۍ د پاره نورې ذريعې لټول پکار دي او هغه د پښتو ادب دے چې دا د ابلاغ يوه لويه ذريعه ده ـ لکه څنګه چې مخکښې په تفصيل سره ذکر وشۀ چې د انجمن له خوا د مشاعرو او د سټيج ډرامو اهتمام په ډېر زور او شور سره وشۀ او د پښتو ادب په ترقۍ کښې دغه صنفونو ډېر لوے کردار ادا کړۀ او تحريك ئې د صوبې په ګوټ ګوټ کښې متحرك کړۀ خو باچا خان لاهغسې پوره مطمئن نۀ وۀ ، ولې چې هغه دپښتون قام سره يوه لېونۍ مينه لرله او دې مينې هغه په قلار نۀ پرېښودۀ ـ هغه د خپل قام او دپښتو ژبې ترقي غوښتله ځکه خو باچا خان په خپل کتاب "زما ژوند او جدوجهد" کښې ليکي :

په جېلخانه کښې ما د خپل قام په حالاتو په ښۀ شان سره غور کړے وۀ ـ زۀ په دې نتيجه ورسېدم چې په دنيا کښې هېڅ يو قوم بغېر د





خپلې ژبې ترقي کولې نۀ شي او په هغوي کښې علوم او فنون پيدا کېدے نۀ شي ـ ما دا اراده کړې وه چې ضرور به يوه رساله په پښتو کښې د خپل قوم د پوهولو ، د دنيا د حالاتو نه د خبرولو او د خپلې ژبې طرف ته مائل کولو (مخ کولو) د پاره جاري کوم او د دې کوشش به هم کوم چې انجمن پخپله ژبه کښې د بچو د پاره د ابتدايي تعليم انتظام وکړي ـ حقيقت دا دے چې دغه وخت په پښتو ژبه کښې هېڅ نۀ وو او پښتو د چا ياده وه؟ او پښتون قوم دومره ناپوهه ، نادانه وۀ چې دا خپله ژبه ورته سپکه ښکارېده او چې کوم قوم ته خپله ژبه سپکه شي نو هغه سپك شي او چې خپله ژبه ترې ورکه شي نو هغه وروك شي ـ د راتلو سره ما دا دوه خبرې انجمن ته پېش کړې ، انجمن دې خبرو سره خو اتفاق وکړۀ لېکن د مالي مشکلاتو په وجه پرې عملي قدم فوراً اخستلے نۀ شۀ ـ د رسالې ذمه واري ما په خپل سر واخسته او عبدالاکبر خان او عبدالله شاه ته دا خبره حواله شوه چې د رسالې د جاري کولو د پاره اجازت نامه دې د حکومت نه واخلي لېکن په مېنځ کښې درې کاله تېر شو او

هغوي د اجازت نامې د پاره يو درخواست قدرې هم ونۀ کړې شۀ ـ زۀ پوهه شوم چې بغېر زما نه دا کارنه شي کېدے او د ۱۹۲۷ء په اخر کښې ما دې کار ته پخپله ملا وتړله او دا کار مې په خپل لاس کښې واخستۀ ـ د اجازت نامې د پاره مې حکومت ته درخواست ورکړۀ ـ اجازت نامه مې حاصله کړه او په ۱۹۲۸ء کښې مې د پښتون په نوم يوه رساله د پښتو په ژبه کښې د اتمانزو نه جاري کړه ـ افسوس خو په دې د ے چې پښتون دومره لو ے قوم او خدا ے ورله د نعمتونو او دولتونو ډك ملك ورکړ ے د ے ، نۀ د دۀ په خپله ژبه کښې يوه رساله او نۀ يو اخبار شته ـ دا د پښتو ژبې اولنۍ رساله ده چې د پښتنو په ملك کښې جاري شوه ـ پښتون قوم ډېر خرچي د ے ليکن دې قسم ځيزونو باندې پيسې نه لګوي او په دې قسم ځيزونو خرچ کولو سره نا اشنا او نابلده دې ـ ډېرې پيسې ما د خپل جيب نه پرې خرچ کړې ـ دې رسالې د پښتنو په ښځو او نرو کښې يوه نوې زندګي پيدا کړه او دا رساله په پښتنو کښې ډېره هردلعزيزه شوه ـ دا خپل ملك خو پرېږده په



باچاخان عهد ساز شخصیت

يورپ ، امريکه او استرېليا کښې د دې نه خبر شو نو هغوي په غوښته او امداد به ئې هم ورسره کوۀ ـ د پښتنو ئې پښتو طرف ته شوق پيدا کړۀ ـ

(زماژونداوجدوجهد ،مخونه:۲۳ ، ۲۳۴ ، ۲۳۳)

د پښتون رسالې د ورومبۍ ګڼې مدير عبدالغفار خان باچا خان وۀ او کشر مدير ئې خادم محمد اکبر وۀ ـ د پښتون رسالې په ورومبي مخ يعنې ورومبۍ پاڼه باندې د قامي شاعر خادم محمد اکبر دا شعر ليك وۀ:

نۀ کلونه د غلام په غلامۍ کښې<br>
نه ساعت د ازادۍ کۀ ځنکدن وي

محترم پروفېسر ډاکټر محمد همايون هما صاحب په خپل کتاب " په سرحدي صوبه کښې د صحافتي او او دبي مجلو روايت" کښې ليکي:

"پښتون" په دغه زمانه کښې د پښتو ورومبنۍ رساله وه او په دې کښې به د هغې وخت د ټولو نوموړو شاعرانو او د قلم د خاوندانو ليکونه چاپ کېدۀ ـ په کال ۱۹۳۰ء کښې چې کله باچا خان د پېرنګي حکومت ونيولو نو د پښتون اشاعت هم بند شۀ ـ

په مئي ۱۹۳۱ء کښې رساله په دوېم ځل جاري شوه او په دغې دوېم دور کښې نوموړے شاعر او اديب عبدالخالق خليق د پښتون مدير وټاکلے شۀ ـ هغۀ د دسمبر ۱۹۳۱ء پورې پرچه ښۀ په باقاعدګۍ سره جاري وساتله خو تر دغې مياشت پورې د اتو اشاعتونو نه پس د باچاخان د ګرفتارۍ په وجه بيا بند شوه ـ په کال **۱۹۳۸ء** کښې په درېم ځل د پښتون اجراء وشوه او چې کله په ۱۹۴۱ء کښې د مجلې د واکمنو نه حکومت ضمانت وغوښتۀ نو د مالي تنګسيا په وجه په مجبورۍ رساله بند کړې شوه ـ په کال **۱۹۴۵ء** کښې په سرحدي صوبه کښې د ډاکټر خان صاحب د وزارت په وخت کښې د پښتون اشاعت په څلورمه پېره شروع شۀ او د پاکستان د جوړېدو پورې جاري پاتې شۀ ـ په کال **۱۹۴۷ء** کښې د حکومت له اړخه د رسالې په اشاعت پوخ بنديز ولګېدۀ ـ (صفحه: **۵۲م۵۴،۵۳**)

ګران ډاکټر هما صاحب هم په دغه کتاب کښې وړاندې ليکي:

د "پښتون" عمومي مزاج سياسي وۀ ـ د خدايي خدمتګار تحريک خبرونه د باچا خان تقريرونه د ملک د سياسي مشرانو د اهمو تقريرونو ترجمې





به په مجله کښې په باقاعدګۍ سره چاپ کېدې ـ وخت په وخت به په کښې د معلوماتي ، اصلاحي رنګ، ادبي ، تاريخي او تحقيقي ليکونه هم چاپ شو ـ باچا خان په ذاتي توګه د پښتون رسالې په اشاعت کښې ډېره دلچسپي لرله ـ په اتمانزو کښې د هغۀ حجره د مجلې دفتر وۀ ـ وروستو دغه دفتر سردرياب ته منتقل شۀ ـ پښتون د خپل وخت يوه درنه معلوماتي مجله وه او د پښتو صحافتي ادب په تاريخ ئې دوامي نقشونه ثبت کړي دي (صفحه: **۵۵،۵۴**)

کۀ مونږ د باچا خان د تحريک يوه لنډه شان جائزه واخلو نو مونږ په دې نتيجه رسو چې د باچا خان تحريک د پښتون د پوهې، علم او ترقۍ د پاره وۀ ـ هغۀ دپښتون ژوند د سوکالۍ او خوشحالۍ سره ليدل غوښتل ، هغه د عدم تشدد قائل وۀ ـ هغۀ پښتون د جهالت د تيارو نه بهر کول غوښتل ـ هغه په پښتون قام کښې د ځان پېژندګلو غوښتله ـ هغه پښتون د تجارت ، صنعت او زراعت په مېدان کښې اختيارمند جوړلو د پاره هلې ځلې کولې نو څنګه چې وئيلې شي ادب او ژوند سره لازم او ملزوم دي نو هغه هم د خپل تحريک د کاميابۍ د پاره د پښتو ادب لمن هم ټينګه نيولې وه او هم په دې پوهه وۀ چې د هر تحريک په شا د ادب لاس وي او کۀ مونږ سوچ وکړۀ نو د باچا

خان تحریك کڅ په اصلي معنو کښې د سیاسي بېدارۍ تحریك وڅ نو ورسره ئې په قام کښې د ادبي شعور د بېدارولو د پاره هم کوشش کړے دے ولې چې ادب خو په مدرسو کښې زده کېږي او د هغڅ دغه مقصد او نصب العېن وڅ چې پښتو ژبه او پښتون قام دې د نورو ژبو او قامونو سره په یو صف کښې اودرېږي ـ دغه وجه ده چې باچا خان او د هغڅ ملګرو پښتون قام د مشاعرو، ډرامو د تحریر او تقریر په ذریعه په هر مېدان کښې د انقلاب راوستلو درس او پېغام ورکړے دے ـ دا اعزاز او فخر باچاخان او د هغوي ملګرو ته حاصل دے چې په دې سیمه ئې د اولنۍ مشاعرې او ستېج ډرامې بنیاد کېښود او ولې به ئې نه کښېښوڅ ځکه چې انجمنِ اصلاح الافاغنه په بنیادي نکاتو کښې دا دوه خبرې شاملې وې:

- ❖ دا جرګه به د پښتو ادب په خاطر په کال کښې یو ځل په اتمانزو کښې د ټولې صوبې د شاعرانو د مشاعرې او په سالانه جلسه کښې د شمولیت دعوت ورکوي۔
- ❖ دا جرګه به د اولسي شاعرانو حوصله افزایي کوي او ناچارو سره به حسبِ توفیق مدد کوي۔

(د برصغیر پاك و هند ازادۍ کښې د پښتنو برخه ، مخ ۷، ۸. عبدالاکبر خان اکبر ، انجمنِ اصلاح الافاغنه)

د دې نه معلومېږي چې د انجمنِ اصلاح الافاغنه مشرانو ته دا پته وه چې دا تحریك بغېر د پښتو ادب نه نیمګړے دے او تر





څو چې پښتنو خپله ژبه زده کړې نه وي نو تر هغې دوي ته د علم او پوهې مقام ته رسېدل ګران دي ـ لکه ستر مشر عبدالولي خان په خپل کتاب "باچا خان او خدایي خدمتګاري" کښې لیکي:

چې کله به دوېم جماعت پاس پښتون هم په پښتو کښې خبرې کول خپله بې عزتي ګڼله په اردو کښې خبرې کول او اردو کښې خط لیکل په خپله پښتو ژبه کښې په خبرو کښې د اردو او فارسۍ غټ غټ ټکي ورټومبل به خلقو ته د تهذیب او تعلیم نخښې ښکارېدې او چې چا له به څو ټکي انګرېزي ورتلله نو هغه خو بیا را پرې مڅ شي ـ هغه خو به ځان د باچا (انګرېز) سره سیال ګڼلو او د وخت بې وخته او د بې ضرورته انګرېزۍ ټکي استعمالول به ئې اورېدونکي متاثره کړي او په هغوي د خپل علم او پوهې رعب کښېنوي ـ کله چې خپلې ژبې پښتو ته د خلقو توجه راوګرځېده نو هغې سره ضروري وه چې پښتون د ژوند په دغه اړخ به هم ډېر ښڅ اثر وشي ، چې کله لیکل او لوستل په پښتو کښې شي نو د لوستلو د پاره ورله تابیا پکار ده نو باچا خان په خپله یوه میاشتنۍ رساله د پښتون په نوم د اتمانزو نه وېستله او په دې طریقه په پښتو ژبه کښې په اول ځل د قلمي انقلاب بنیاد کښېښودې شڅ ـ انقلاب ورته زڅ ځکه وایم چې اولنے قدم په دې سلسله کښې پښتنو شاعرانو پورته کړڅ ـ شاعري اوسه پورې یواځې ګل او بلبل، سنه او وربل نه

چاپېره چورلېده ، ولې دې نوي انقلاب سره شاعرۍ د اولسي ښېګړې يوه ذريعه وګرځولې شوه ـ پښتنو شاعرانو او ليکوالانو ته يوه نوې نخښه کښېښودې شوه چې به هغوي پرې خپل متهونه وګوري ـ

(باچا خان او خدايي خدمتګاري ـ مخ: ۳۷۲ ، عبدالولي خان)

مونږ په دې نتيجه رسو چې دا تحريك د پښتون قام او ژبې ، ثقافت ، تهذيب ، تاريخ ته د لوړ مقام ورکولو تحريك وۀ او د دې تحريك د پرمختګ د پاره د پښتو ادب په لاره خپل تګ کول دي ، هله به خپل مرام ته رسي خو وړومبے به دا تحريك د پښتو ژبې او ادب تحريك ګرځول وي او هم هغه شان وشو ـ دې قامي تحريك يو پښتو ادب ته لويه برخه ورکړه ځکه نو مونږ ورته د پښتو تحريك هم وئيلې شو ـ ځکه چې دې تحريك پښتو ادب کښې ستر پوهان، اديبان ، شاعران ، دانشوران او ليکوالان پېدا کړي دي چې پښتو ژبه ئې ژوندۍ ساتلې ده ـ په دې حقله ستر پوهاند ، اديب ، شاعر او محقق ډاکټر هما صاحب په خپله يوه مقاله کښې ''تحريك او ادبي تحريك'' د سر خط لاندې ليکي:

> په شلمه صدۍ کښې د باچا خان د قامي تحريك په رڼا کښې چې کوم ادب پېدا شۀ هغه البته د تحريك غوښتنه پوره کوي او مونږ دغې ادب ته د قامي تحريك نوم ورکولې شو ـ





(مياشتنۍ ننګ ناموس، مردان ـ ۱۹۹۲ء)

د دې دومره اوږد بحث نه دا نتيجه راولاړېږي چې د باچا خان تحريك پښتون قام ته ډېر څۀ ورکړي دي ـ پښتون قام ئې د تعليم، علم ، پوهې په رڼا منور کړے وۀ او د جهالت د تيارو نه ئې راوښستے او خپل مقام د پېژندګلو لار ئې ورته د پښتو ادب په ذريعه ښودلو يوه هڅه کړې وه چې نن هغه ارمان د هغه ستر بابا پوره شۀ او پوره کېږي ـ

دلته به د علامه اقبال د يو فارسي شعر سره دا مقاله ختمه کړم:

*شعر کجا و من کجا شعر و سخن بهانه ایست*
*سوئے قطار مي کشم ناقۀ بے زمام را*

ترجمه:

چرته شعر او چرته زۀ ، شعر او سخن خو تشه يوه بهانه ده ـ د ملت د بې مهاره اوښې د وحدت د قطار په لوري راسمول دي ـ

کتابیات:

1. زما ژوند او جدوجهد۔ عبدالغفار خان ، کابل چاپ ۱۹۸۳ء
2. باچا خان او خدايي خدمتګاري ورومبے ټوك ۔ عبدالولي خان، د چاپ ځاے پېښور، ۱۹۹۲ء
3. د برصغير پاك او هند په ازادۍ کښې د پښتنو برخه ۔ عبدالاکبر خان اکبر ، انجمنِ اصلاح الافاغنه ،ينورستي پبلشر افغان مارکيټ قيصه خوانۍ پېښور ، ۲۰۰۹ء
4. له پير روښانه تر باچا خانه ۔ علي خان محسود ۔ دانش خپرندوي ، قيصه خوانۍ پېښور
5. په سرحدي صوبه کښې د صحافتي او ادبي مجلو روايت ، د ۱۸۵۴ء تا ۱۹۷۵ء پورې ۔ ډاکټر محمد همايون هما ، سهيل پرنټرز مردان ۲۰۰۹ء
6. خدايي خدمتګار تحريك۔احمد کاکا ، يونيورستي بك ايجنسي، پېښور ۱۹۹۱ء
7. زۀ او زما زمانه۔عبدالخالق خليق، اداره اشاعت سرحد پېښور ، ۱۹۷۴
8. د رڼاګانو محفلونه ۔ سيد صابر شاه صابر يونيورستي بك ايجنسي خيبر بازار پېښور ۱۹۹۴ء





9. د عبدالخالق خليق د ژوند او ادبي خدمات ۔ مذکر شاه خليل، ملت پرنټرز لاهور، ۲۰۰۱ء
10. د ښکارندوي غوري په قصيده مشاعره ۔ ګل باچا الفت ، کابل چاپ ۱۹۸۳ء
11. د پښتو پرون ، نن ، سبا ۔ اسير منګل ، دانش خپرندوي، قيصه خوانۍ پېښور ۲۰۰۵ء
12. د پښتو ادبي تحريکونه ۔ ډاکټر راج ولي شاه ختك ، پښتو اکېډمي پېښور يونيورستي ۱۹۸۹ء
13. مياشتنۍ ناموس ۔ مردان، ۱۹۹۲ء

ډاکټر محمد زبير حسرت

## د باچا خان بابا خبرې

❖ په ماشوموالي کښې چې څۀ عادتونه په بچو کښې پيدا شي نو چې بيا غټ (لوے) شي نو هم پکښې وي او په ډېره مشکله د هغو بدو عادتونو نه خلاصيږے شي.
(زما ژوند او جدوجهد ۱۷ مخ)

❖ رښتيا خبره دا ده چې ظالمان بهادران نۀ وي ، ډېر بُزدله او بې ايمانه وي ، بهادر سړے هيچرې په چا ظلم نۀ کوي (مخ ۲۲)

❖ يوه ورځ زما پښه ګزك شوې وه ، ډاکټر وګرم خبر شۀ ، راغے، زۀ ئې خپلې بنګلې ته بوتلم اوبۀ ئې ګرمې کړې زما پښه ئې ووينځله او بيا ئې زما په پښه پټۍ ولګوله .رښتيا خبره خو دا ده چې زمونږ د رسول صلی الله علیه وسلم په قول "خيرالناس من ينفع الناس" باندې دوی عمل کړے دے ، وايه زمونږ ، چې ناس يعنې د خدا ے مخلوق خو لا پريږده د خپل قام، ورور او عزيز خدمت کولو ته تيار نۀ يو ، خدمت خو لا پريږده په اور کښې





رانه ولاړ وي او څکه خو خدا ے خوار او ذليل کړي يو .
ما کښې چې د انسانيت ، قوم پرستۍ، وروری ، عزيزولۍ او وطن دوستۍ او د خدا ے د مخلوق د خدمت کومه جذبه پيدا شوې ده په هغې کښې زما د دې استاذ وګرم ډېر لاس دے . ما به دا فکر کوۀ چې دوی د کوم ځا ے نه راغلي دي ، زمونږ د قامه نۀ دي ، زمونږ په مذهب نۀ دي ، دلته راغلي دي او زمونږ د بچو خدمت کوي او غريبانانو ته د خپلې ګېډې برخه ورکوي او زمونږ خپل وطن دے، زمونږ خپل بچي دي، زمونږ خپل قوم دے او مونږ د هغوي د پاره هېڅ نۀ کوو. بيا به مې دې خپل قوم او ملك طرف ته خيال لاړ نو ما به دې ته ډېر فکر کاوۀ چې زمونږ خانان ، نوابان، ملايان او تعليم يافته خلق سره د دې چې مونږ يو قوم يو، يو ورونه او يو مذهب يو خو دا جذبه راکښې نشته چې د دې خپل غريب قوم د بچو سره امداد وکړو .
(۲۸-۲۹ مخونه)

❖ زۀ د وړوکوالي نه کفايت شعاره وم او د خپل خرڅ د پيسو نه به مې بچت کاوۀ . هم دا وجه ده چې ما پخپل ټول عمر کښې د چا نه قرض نۀ دے غوښتے او نۀ چاته مختاج شوے يم . خلقو زما نه قرضونه اخستي دي چې

ډېرو رانه خوړلي دي او زما د وورور خان صاحب مټ لړ ارت وهٔ.(۲۹مخ)

❖ خدای بې نیازه دی. هېڅ شي او هېڅ چا ته محتاج نهٔ دی. کهٔ خېراتونه دي کهٔ زکات دی کهٔ صدقات دي، کهٔ مونځ دی، کهٔ روژه ده، کهٔ حج دی، دا ټول زمونږ د ښېګړې دپاره دي، کهٔ ښهٔ کوې د ځان دپاره دي او کهٔ بد کوې هم د ځان دپاره دې دي.(۳۹مخ)

❖ ډېر خلق خپلې لونه د پېسو د پاره ورکوي. پکار دي چې د سړیتوب په لحاظ خپلوي وشي. دا نه چې د دولت دپاره ځوانه جینۍ بوډا ته کښېنولې شي. (۴۹مخ)

❖ نو د دې داسې پېښو مخ نیوے پکار دے، باید چې د هلك او جینۍ نه پُښتنه کېږي ځکه چې دا خو دوي د ژوند د ملګرتیا سوال دے.(۵۰مخ)

❖ پېرنګیانو جرګې د انصاف او امنیت برقرارولو د پاره نهٔ وې جوړې کړې، بلکې پېرنګیانو جرګې په پوره تدبیر د دې غرض د پاره جوړې کړې وې چې په جرګو کښې انصاف نهٔ کېږي، پرې وي، جمبې وي او اکثر چې به ګناه ګار سړي په سفارش یا په بډو رشوت خلاص شو نو مخالفې ډلې به د بدل اخستلو کوشش کاوهٔ او په دا شان به دا دښمنۍ پېړو په پېړو چلېدلې او





دا سلسله به روانه وه. پښتانهٔ به په خپلو کښې اړم وي او مونږ پېرنګیانو ته به ئې توجه نهٔ وي.(۵۱مخ)

❖ کهٔ په پښتون کښې علم راشي قام به ترقي وکړي نو مونږ به هم ترقي وکړو (۲۵مخ)

❖ د قام مینه او خدمت او د حریت جذبه یواځې په تعلیم نهٔ ده. مونږ چې د قام خدمت او ازادۍ تحریك شروع کولو زهٔ په ښارونو کښې تعلیم یافته و پسې ډېر وګرځېدم، ما په هغوي کښې داسې خلق پېدا نهٔ کړے شول چې د خدای د پاره د قام خدمت ته تیار شي. (۲۹مخ)

❖ او چې د دوي نه ما یوسه شوم، ښارونه مې پرېښودل او کلو بانډو ته ووتم او عوامو له ورغلم، په څلورو میاشتو کښې دومره خلق راسره راپاڅېدل چې پېرنګے ورنه وویرېدهٔ. زهٔ دولس کاله په تعلیمیافتو و پسې ګرځېدلے یم خو د دوي نه مایوسه شوم او کلو ته ووتم نو په زرګونو خلق راسره ملګري شول.(۲۹مخ)

❖ ما سره د خپل قام د ښځو ډېر قدر او عزت وهٔ او ډېره همدردي مې ورسره وه، ولې چې زمونږ په قام کښې هم لکه د نورو مشرقي قومونو په شان د ښځو قدر نهٔ وهٔ. دوي به د سړو نه ښکته ګڼلې شوې. حالانکې چې پستي او بلندي په عمل ده، کهٔ د چا عمل پست وي،

هغه نر وي کهٔ ښځه ، پکار دي چې پست وګڼلے شي او
د چا عمل چې اوچت وي ، نر وي کهٔ ښځه، پکار دي
چې په درانهٔ نظر ورته وکتلے شي. خدائے خو نر او ښځه
د دنيا د ابادئ دوه ملګري پيدا کړي او د بشريت د
ګاډي دا دوه پايې دي. دا ګاډے په يوه پايه نهٔ شي
چلېدے او بيا زمونږ د پښتنو ښځې خو ډېرې پاك
لمنې، حياناکې، مينه ناکې او وفادارې دي او ډېرې
خدمتګارې دي. (۷۵ مخ)

❖ پښتانهٔ اوس هم د اخبار لوستو شوق نهٔ لري ، په چتي
څيزونو، په بې ځايه رواجونو په زرګونو روپۍ خرڅ
کوي خو په اخبار يوه پيسه نهٔ ورکوي او هم دا وجه ده
چې د دومره بهادر او لوے قوم پخپله ژبه کښې يو
قومي اخبار نشته.

❖ چونکې زمونږ د اخبار سره مينه نشته نو ځکه زمونږ
پخپله ژبه کښې اخبار هم نهٔ وو. څنګه چې ئې د اخبار
سره مينه نهٔ وه دغسې ئې د خپلې ژبې سره هم مينه نهٔ
وه. د تعليم يافته کسانو سره به مې چې د ژبې په باره
کښې خبرې وکړې ، راته به ئې ووئيل چې پښتو لا ډ څهٔ
ژبه ده ؟ په دې کښې علم نشته، پښتو کښې څهٔ دي؟
ما به ورته وې چې هلکه! دا نورې ژبې خو د اسمانه نهٔ
دي راکوزې شوې ، د هرې ژبې ويونکو خپلې ژبې ته



باچاخان عهد ساز شخصيت

ترقي ورکړې ده ، پښتنو چې خپلې ژبې ته توجه نهٔ ده
کړې ، دې کښې د پښتو ژبې څهٔ ګناه ده؟ دا خو زما او
ستا ګناه ده.

❖ اخبار لوستل ډېر ضروري څيز دے ؛ دې کښې د ټولې
دنيا حالات دي ...... د پښتنو ښځې د نارينه و نه
ذهينې دي.... زما به همېشه دا کوشش وهٔ چې د ښځو
د مغزو نه د کمترئ احساس لرې کړم . ځکه چې په
دوې کښې دا احساس خودغرضو او ناپوهو سړو پيدا
کړے دے. ما به خپل ټبر سره په دې خبره بحث کولو
چې ښځه او نر دواړه د خدائے په نزد يو شان دي ،
دروندوالے او سپك والے په عمل دے او دا به مې هم
ورته وئيل چې د دې احساس په پيدا کولو کښې تاسو
ښځې پخپله هم ګرمې يئ. ځکه چې ځوي ته په يو نظر
ګورئ او لور ته په بل نظر او د وړوکوالي نه د جينکو په
مغزو کښې دا خبره کښېنوئ چې هلکان او نارينه
خدائے د جونو او ښځو نه بهتر او لوے پيدا کړي دي.
بيا به مې ورته وې چې انسان د خدائے په ټول مخلوق
کښې اشرف ګڼلے شي نو په دې وجه ئې د نور مخلوق نه
ذمه واري زياته ده خو زهٔ چې دې خپل قوم ته ګورم نو
ماته په دوي او ځناورو کښې فرق نهٔ ښکاري. د دوي
سره هم د خپلې ګېډې غم دے او ځناور سره هم د خپلې

جالي غم وي. دوي هم بچي راوړي او د خپلو بچو
غم خوري او ځناور هم بچي زېږوي او لويوي ئي نو دوي
په څۀ اشرف المخلوقات وبللے شي . دوي هم لکه د
ځناورو په شان يو بل وژني ، دوي به هله اشرف
المخلوقات وګڼلے شي چي دوي کښي اجتماعيت ،
وروري، عزيزولي، مينه او محبت پيدا شي. تش په دي
چي نور ځناور په څلورو پښو ګرځي او انسان په دوه
پښو، اشرف کېدے نۀ شي . نارينه چي مړشي ، ښځه
کنتون کوي او چي ښځه مړه شي نارينه سمدستي بله
ښځه وکړي. پکار خو دا دي چي د ښځي څښتن مړ شي
چي هغه هم بل مېړۀ وکړي. (۷۷ تا ۷۹ مخونه)

❖ د دنيا تاريخ ګواه دے چي په کوم قوم کښي داسي
اشخاص پيدا شوي دي چي هغوي د خپل قوم د اصلاح
د پاره پاڅېدلي دي نو د اقتدار خاوندانو ئي مخالفت
کړے دے. ولي چي هغوي خپل اقتدار په خطره کښي
ليدلے دے ، تاسو دي خپل د خدايي خدمتګارو
تحريک ته وګورئ ، څومره چي قوم کښي پوهه راغلي
ده هم هاغه هومره د اقتدار د خاوندانو قدرت کم
شوے دے او د خپل پيغمبر صلى الله عليه وسلم ژوند
مطالعه کړئ چي خپلو ترونو ، تربورانو ئي مخالفت
وکړۀ ، د څۀ د پاره؟ د اقتدار د پاره او د مديني خلقو





ئي ملا تړ وکړۀ ، ولي چي د هغوي سره نۀ مذهبي
اقتدار وۀ ، نۀ سياسي ، يهودو چي ئي مخالفت وکړۀ
هم د اقتدار د پاره وۀ. (۸۴-۸۵ مخونه)

❖ پښتون ژوندے قوم دے ، خو چي د ژوندي کولو خلق
پکښي پيدا شي ، تر څو چي په يو قوم کښي د ژوندي
کولو د پاره خلق پيدا نۀ شي ، هغه قوم ژوندے کېدے
نۀ شي. (۸۵مخ)

❖ د زماني د بدلون سره کۀ قام بدل شي ترقي وکړي ، کۀ
نه وروستو پاتې شي. (۸۵ مخ)

❖ رسم او رواج پرېښودل اسان کار نۀ دے. په رښتيا ډېر
ګران دے او اخلاقي جرات غواړي. (۸۵ مخ)

❖ د غلطي پراپېګنډې مقابله کول پکار وي ، چي سرے
پاڅېږي، ملا وتړي او خلق په حقيقت پوهه کړي او دا
هله کېدے شي چي د بې غرضو هم خيالو مضبوطه ډله
وي ، چي د خلقو اعتماد ئي حاصل کړے وي . اوچت
شي چي ملك کښي وګرځي او خلقو ته غلطه خبره او
حقيقت سم ورښکاره کړي. (۱۰۲ مخ)

❖ د دي دنيا تاريخ خو زمونږ په وړاندي پروت دے، چا ته
چي مذهب راغلے دے او هغوي منلے او عمل ئي پري
کړے دے ، په دي دنيا اباد شوي دي ، د خوشحالۍ
او امن ژوند نصيب شوے دے. تاسو عربو ته وګورئ

چې د اسلام نه مخکښې د هغوي څۀ حال وۀ ؟ او چې اسلام راغے او عمل ئې پرې وکړۀ ـ د هغوي څۀ حال شو؟ د اسلام په وجه دوي د حکومت، دولت او عزت خاوندان شول ـ تاسو د هغه وخت د مسلمانانو د ژوند په هر اړخ نظر واچوئ ، غور او فکر پرې وکړئ او د اسلام د دې تېکه دارانو په خبرو غور او سوچ وکړئ چې دا دوي چې کوم اسلام بیانوي، دا هغه د خدا ے او د رسول (ص) اسلام دے کۀ د سرمایه دارو؟ او دوي چې څۀ وايي ، د خدا ے دپاره ئې وايي کۀ د سرمایه دارو د پاره ئې وايي ؟ (۱۱۱مخ)

❖ خدا ے پاك په قران کښې د بنی اسرائیلو د عالمانو ذکر کوي چې هغوي به د لږو پېسو د پاره د خپلو خواهشاتو د پوره کېدو د پاره د تورات او زبور په ایاتونو کښې تحریفونه او تاویلونه کول ـ هر مذهب او مسلك چې د خود غرضو او چالاکو خلقو په لاس ورشي بیا پکښې هغه اولنے انقلابیت او روح پاتې نۀ شي، بیا د سرمایه دارو مذهب ترې جوړ شي او تش کالبوت شي.- ( ۱۲۰مخ)

❖ په غلامۍ کښې د انسان نه انسانیت هېر شي او انساني خوبۍ پکښې پاتې نۀ شي ـ ( ۱۴۱ مخ)





❖ مونږ د خلقو د پېغورونو له کبله ډېر غلط کارونه کوو ـ (۱۴۸مخ)

❖ د پښتنو ودونه له رواجونو ډك وو ، ما د هغو اصلاح غوښتله نو ځکه مې د ځان نه شروع وکړه او د شریعت مطابق مې اول ډولۍ راوړه ـ په سبا له مې ولیمه ورکړه او يو وخت مې ښه ډوډۍ د کلي خلقو ، دوستانو او خپلوانو له ورکړه ـ خلقو راته د ښندرې په دود روپۍ را اوچولې خو ما ونۀ منلې ـ کۀ څۀ هم په ډېرو زمونږ پورې وې ، په ډوډۍ کښې مو د رسم او رواج د اصلاح کولو په باره کښې تبادله خیال د خلقو سره وکړۀ ـ په هغه وخت کښې دا دود وۀ چې په وادۀ کښې به ډولو کسب ګرو له وادۀ ته راغلو مېلمنو پېسې ورکولې ، چا به ائینه ښوده، چا به سپېلني لوګي کول ، چا به ډول وهلو، چا به ګلونه راوړې وو، چا به رباب کښې چاربېته وئیله ، په مېلمنو به يو لوټ مار وۀ ، کۀ د چا زړۀ به وۀ او کۀ نه خو د خپله شرمه به ئې دا حساب کسب ګرو ته ادا کولو. زما په وادۀ کښې د اول ځل د پاره دا کارونه ما بند کړل او کسب ګرو ته مې دا ووئیل چې تاسو به مېلمنو له تکلیف نۀ ورکوئ ـ ستاسو د ډولو حق به زۀ ورکوم ولې چې تاسو زما کسب ګر یئ ـ دغه شان ډېرې به ګډېدې ، مېلمنو به کۀ د چا زړۀ وۀ کۀ

نه ، پیسې به ئې ورکولې . سازیان به وو، جنجونه به وو، ټوپکي او غربینونه به خلاصېدل . لنډه دا چې ډېر فضول خرڅونه به وو . زما په وادهٔ کښې دا ټول ما بند کړل او دا مې د دې د پاره وکړل چې د قام او ملك د پاره ډېر نقص دے او خلق ترې تنګ وو خو چا کښې ددې د پرېښودو اخلاقي جرات نهٔ وهٔ . ما د دې شیانو د مخنیوي ابتدا د خپل وادهٔ نه وکړه او خلقو ته مې هم ووئیل چې تاسو هم دا بې ځایه رواجونه پرېږدئ . (۱۵۲ مخ)

❖ یوه ورځ زهٔ د امان الله خان ملاقات له تللے وم ، ډېرې خبرې مې ورسره وشوې . په خبرو خبرو کښې مې ورته دا ووې ، تاله ترکي درځي ، فارسي درځي او نورې ژبې هم درځي خو خپله ژبه نهٔ درځي . زما خبرې په هغهٔ ډېر اثر وکړهٔ او وعده ئې راسره وکړه چې زده کوم به ئې . کله چې له افغانستانه ووېستلے شهٔ ، زهٔ بمبئ ته د دهٔ لیدو له ورغلم نو هلته ئې ماسره پښتو کښې خبرې وکړې . (۲۳ مخ)

❖ په کابل کښې زمونږ تعلقات د نادر خان او د دهٔ د کورنۍ سره ډېر وو . دې په خپله وزیر دفاع وهٔ او ورور ئې سردار عبدالعزیز خان د معارف وزیر وهٔ . یوه ورځ ئې ما ته ووې ، څه ورشه د حبیبي لیسه (کالج) وګوره





چې کالج ته ورغلم نو د یو جماعت د هلکانو نه مې دا تپوس وکړهٔ چې ''شما کیستید؟'' دوي به راته ووئیل چې '' افغان هستم'' بیا مې ورته ووې چې '' ملك شما؟'' دوي به ووې ''افغانستان'' بیا مې ورته ووې '' افغاني مېداني که افغان هستي؟'' نو غلي به شو ، غږ به ئې نهٔ کوهٔ نو ما به ورته ووئیل چې څنګه افغان یئ او څنګه د افغانستان اوسېدونکي یئ چې خپله ژبه نهٔ درځي .

❖ دغه شان محمود طرزي صاحب سره چې د افغانستان وزیر خارجه وهٔ او ډېر لائق سړے وهٔ ، په یوه لویه مېلمستیا چې دهٔ د مهاجرینو د پاره کړې وه ، د ژبې بحث راغے ، یو سړي ورنه پُښتنه وکړه چې دا څنګه افغانستان دے چې افغاني پکښې نشته . طرزي صاحب ووئیل چې فارسي هم زمونږ د ملك ژبه ده نو ما ورته ووئیل چې طرزي صاحب! پښتو خو د افغانستان ملي ژبه ده او د اکثریت ژبه ده ، په ټوله دنیا کښې د اکثریت ژبه هم سرکاري وي ، هم دفتري ،هم تعلیمي وي . (۱۲۳-۱۲۴ مخونه)

❖ د افغانستان او ازادو قبائلو حالت چې مې لیدهٔ او پینځلس کاله مې په هندوستان ، قبائلو او افغانستان کښې ګُرزې پرزې وکړې نو په دې نتیجه ورسېدم چې

انقلاب د منډې کار نۀ دے ، او دومره ه اسان څیز نۀ دے ، انقلاب د سړې سینې کار دے ، انقلاب عمل او پوهه غواړي، انقلاب عالمان او پوهان غواړي چې د پوهې سره قام وروزي او انقلاب ته ئې اماده کړي ، د انقلاب د پاره د اشخاصو ضرورت دے . تۀ ګوره چې زمونږ جذباتي ملګري په څومره جوش راوتلي وو، ټول لاړل خوارۀ شول نو کښېناستم د ځان سره مې ښۀ فکر وکړۀ ، زۀ په دې نتیجه ورسېدم چې زمونږ د قام د تجارت خوا ته توجه شته نۀ د صنعت خواته ، نۀ د زراعت خواته او نۀ د تعلیم خواته . د بلې خوا نه په رسمونو ، رواجونو کښې تر غوږونو ډوب دي، په خانه جنګو اخته دي ، داسې قام انقلاب نۀ شي کولے او دا قام د دې بلاګانو نه خلاصول پکار دي چې سیاسي شعور پکښې پېدا شي او دا کار یوه پرامنه فضا غواړي، تر دغه وخته پورې زۀ په دې عقیده وم چې دا ټول کارونه انقلاب غواړي ، تشدد راته د انقلاب نژدې او د کامیابۍ لار ښکارېده ، خو د تجزبې نه وروستو راته معلومه شوه چې د جنګ په وخت کښې اسونه نۀ څرېږي نو ځکه مې اراده وکړه چې خپل کلي ته واپس کېږم او د عدم تشدد د اصولو په بنا به کار کوم ، اول به د انقلابي اشخاصو د تعلیم او تربیت د پاره قومي





مدرسې جوړوم نو ځکه اتمانزو ته راغلم . زۀ چې له هجرته بېرته راغلم ، د هغو مدرسو د بېرته جاري کولو کوشش مې کولو چې پېرنګیانو د جنګ په زمانه کښې بندې کړې وې . (۱۲۸ ، ۱۲۹ مخونه)

- ❖ چې په ډلو کښې اختلاف پېدا شي کۀ ډېر ښۀ او زورور خلق وي هم بې کاره شي او د هغوي طاقت د یو بله په غورزولو کښې صرف شي . په خدمت کښې اختلاف نۀ راځي ، اختلاف د خودغرضۍ نه پېدا کېږي . (۱۷۳ مخ)
- ❖ پښتانۀ ډېر ښۀ قام دے ، دوي په افسانو او قیصو ډېر نۀ پوهېږي . کۀ هر ښۀ کار چې په دوي کوې نو ځان ورته نمونه کړه چې تۀ روان شوې ، دوي هم درپسې روانېږي . (۱۷۵ مخ)
- ❖ هغه کار چې سړے ئې په ښکاره نۀ شي کولے او پټ ئې کوي، سړے کمزورے کوي او د خپلو اصولو نه ئې وباسي او په سړي کښې ویرې او بُزدلي پېدا کوي . ( ۱۸۹ مخ)
- ❖ زما د ابتدا نه دا عقیده ده چې پښتون ډېر ښۀ قام دے ، ډېر زر ئې اصلاح کېدے شي . په شرط د دے چې څوک ئې پوه کړي . دا نن چې دے په داسې بد حالت

کښي دے ، د دي وجه دا ده چي ځوك ئي غم نهٔ خوري
او نهٔ ئي پوهوي۔ (۱۹۵مخ)

❖ مونږ ټول پښتانهٔ يو قام يو ورونړه يو، د يو بابا اولاد يو ، زمونږ عزت او ذلت يو دے ، کهٔ چرې مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم په دې حديث عمل وکړهٔ چي " په ځان دې څهٔ پيرزو نهٔ وي په بل ئې هم مهٔ پيرزو کوه" نو ډير زر به کامياب شو ، مونږ چي د خپل پښتون ورور سره د هر سلوك اراده وکړه ، پکار دي چي د لږ ساعت د پاره په هغې غور وکړو او خپل ګريوان کښې وګورو کهٔ چرې دا کار بل ځوك ما سره وکړي نو زهٔ به پرې خوشحاله شم که خفه ؟ کهٔ چرې زهٔ په دې خوشحاليږم نو هغه کار کول پکار دي او کهٔ زهٔ پرې خفه کيږم نو پکار دي چي دغه کار مونږ ونهٔ کړو۔ بلکه دا چي مونږ پښتنو کښې کهٔ يو سړے بد کار وکړي نو په دې وجه د هغهٔ ملګرتيا پکار نهٔ ده چي دے پيښورے دے يا بنووال دے يا کوهاټے دے يا ډيره وال دے او زما د علاقې دے ، د بد کارو او بد چلنه خلقو ملګرتيا نهٔ ده پکار ، کهٔ په ځان زمونږ ورور هم وي ځکه چي د دې د لاسه قام او سوسائيټۍ ته نقصان رسيږي او هم دا خلق قام تباه کوي۔





مونږ له پکار دي چي هميشه د حق ا و ښو خلقو ملګرتيا وکړو ، کهٔ په مونږ کښې يو سړے بد کار وکړي مونږ ټولو له پکار دي چي د خپلې ورورۍ او عزيزولۍ نه ئې وباسو کهٔ هغه بنو وال وي، کهٔ پيښورے وي ، کهٔ کوهاټے وي ، کهٔ ډيره وال وي ، کهٔ مونږ په رښتيا په دې لاره روان شو نو زر به هغه کسان چي په بدو لارو روان دي او د چا د لاس چي پښتانهٔ په دې مصيبت اخته دي د خپلو بدو کارونو نه به واوړي۔
دا نن چي پښتانهٔ په بدو لارو روان دي ، د دې وجه دا ده چي مونږ د ښو او بدو فرق نهٔ کوو او نهٔ ځوك شته چي د ښو او بدو په فرق مو پوهه کړي۔ يو بد عمله سړے چي وويني چي زما په بدعملۍ کښې ملا تړ کيږي نو هغه به ولې د خپلې بد عملۍ نه لاس اخلي او کهٔ مونږ د ښو بدو فرق وکړو او لکه چي هر ماستختن په نمانځهٔ کښې د خداے سره وعده کوو چي " ونخلع و نترك من يفجرك" يعني ځوك چي ستا نافرماني کوي، مونږ به هغوي پريږدو، کورکلے به ورسره نهٔ کوو ، کهٔ دا وعده په ځاے کړو ، پښتون به يکدم بدل شي نو مونږ له پکار دي چي په دې خبرو هر پښتون پوهه کړو او دا خبرې د هرپښتون غوږو ته ورسوو ۔ (۱۹۸-۱۹۹ مخونه)

❖ جګړه او فسادونه مهٔ کوئ خپل مشقت کوئ او چا له رشوت مهٔ ورکوئ. (۲۰۲ مخ)

❖ د قام او ملك د خدمت د پاره خلقو قسم قسم تکليفونه اوچت کړي دي او دا د خدا ے يو امتحان او ټرېننګ دے، د خدا ے کارونه ټول د خېر دي. ما له صبر کول پکار دي ځکه چې خدا ے د صبرناکو ملګرے دے. اخر به ئې نتيجه په خېر وي ، ټول عمر به دا کړاوونه نهٔ وي اخر به راحت راشي. (۲۰۴ مخ)

❖ زما دې خپلې صوبې او پښتنو سره دومره مينه ده چې زهٔ ئې بيان نهٔ شم کولے. خپل ملك کښې خپل قام سره اوږے تږے او په تکليف کښې خوښ يم نهٔ په بل ملك کښې په عېش او عشرت کښې. (۲۰۴ مخ)

❖ پېرنګيانو چې کوم امتياز قائم کړے دے ، دا په نېك نيتۍ نهٔ دے ، دا ئې په دې غرض قائم کړے دے چې په مونږ کښې داسې بې اتفاقي او ګړبړي وي خو زهٔ د دې په حق کښې هم نهٔ يم چې دې خبرو له دې مونږ دومره اهميت ورکړو چې زمونږه تعلقاتو او تحريك ته پرې نقصان ورسي ځکه مونږ چې څهٔ کوو نو د ځان د پاره نه بلکې د خپل قام او خپل ملك د پاره ئې کوو. د بل د پاره خو ئې نهٔ کوو. او بله دا چې تاسو ته به معلومه وي چې دا نن مونږ حکومت سره په جنګ يو ،





دا خو د دې دپاره دے چې مونږه دا امتياز لرې کول غواړو او د دې په ځاے مساوات قائمول غواړو او تر هغه وخته پورې دا امتياز لرې کېدے شي چې تر کومه پورې مونږه کامياب شوي نهٔ يو او واك اختيار زمونږ په لاس کښې راغلے نهٔ وي. (۲۱۳-۲۱۴ مخونه)

❖ افسوس چې مونږ خلق د بل د ارام او تکليف خيال نهٔ ساتو ګنې هم دغه ذکر مونږ ورو او پټ هم کولے شو لېکن د دې خبرې کمے هم زمونږ په عامو مسلمانانو او هندوانو کښې موجود دے. مونږ هميشه پخپل خيال پسې ځو او د بل فکر نهٔ کوو. دا يو لوے کمے دے. مونږ له پکار دي چې هېمشه د خدا ے د مخلوق د تکليف او ارام فکر او خيال وساتو او څهٔ چې کوو نو چې اول ئې په ځان وګورو کهٔ چرې ځان له ئې خوښوو (بيا پکار دي) چې بل ورور له ئې هم خوښ نهٔ کړو. (۲۱۴-۲۱۵ مخونه)

❖ پښتانهٔ هم دغسې خلق دي لکه څنګه چې تاسو (د هندوستان هندوان، سيکان او نورو قوميتونو او ذاتونو خلق) يئ. څنګه چې تاسو کښې ښهٔ او بد خلق شته ، دغه شان په پښتنو کښې هم شته. دا ټولې خبرې د پښتنو دښمنانو جوړې کړې دي او د هغوی پراپېګنډه ده ، د دې خبرو مطلب ئې ستاسو تېرا ايستل

او زمونږ بدنامول دي ځکه چې تاسو ونهٔ ویروي او مونږ بدنام نهٔ کړي نو بیا به په دې ملك بادشاهي څنګه کوي؟ (۲۱۹مخ)

- ❖ زمونږ په خلقو کښې دا يو لوے کمے او نقص دے چې مونږ همېشه د بل د کمزوريو او عېبونو د راوښکلو او لټولو په فکر او غم کښې يو او خپلو کمزوريو او عېبونو ته فکر نهٔ کوو او په دې وجه خو مونږ نن په دنيا کښې برباد او نېستمند يو ، په ځاے د دې چې مونږ بل ته ګوته ونيسو ، ځان ته ګوته نيول پکار او د نورو د اصلاح نه وړومبے د ځان اصلاح فرض ده ، اول ځان دے بيا جهان دے. (۲۲۰ مخ)
- ❖ افسوس په دې دے چې مونږ سره ښوك ښهٔ سلوك کوي هغهٔ ته نېغ يو او چې ښوك مو سر په ډنډه وهي نو هغهٔ ته تيتېږو او دا ډېر خراب عادت دے او مونږ له داسې عادتونه پرهېزول پکار دي. (۲۳۰ مخ)
- ❖ ما د ټالسټاے يو کتاب کښې چې شپږويشت قيصې ئې پکښې ليکلي دي، دا قيصه لوستې ده چې يوه چينه ده د هغې نه هر يو محلت ته نلکه راغلې ده خو د هر يو محلت خلق په دې کښې نښتي دي چې زمونږه د نلکې ابهٔ پاکې او خوږې دي او د دې نورو نلکو اوبهٔ ناپاکې او ترخې دي، دې ته هېڅوك فکر نهٔ کوي چې





دا ټولې نلکې د يوې چينې نه راغلي دي نو څنګه يوه پاکه او خوږه شوه او نورې ناپاکې او ترخې شوې؟ او اسلام خو دا تعليم ورکوي چې د مسلمان به په دې کتاب هم ايمان او عقيده وي او په وړانديني مذهبونو او کتابونو هم " والذين يومنون بما انزل اليك و ما انزل من قبلك " دا د دې ثبوت دے چې اسلام ټولو مذهبونو سره رواداري غوره کړې ده. (۲۵۰-۲۵۱ مخونه)

- ❖ د هندوستان خلق هله د ترقۍ او ازادۍ معراج ته رسېدے شي چې هر چا له د خپلې عقيدې او خيال ازادي ورکړو او د هېڅ قسمه ظلم او جبر په چا ونهٔ کړو. (۲۵۲ مخ)
- ❖ مذهب خو دنيا ته د دې د پاره نهٔ دے راغلے چې د خلقو په مينځ کښې نفرت پيدا کړي بلکې مذهب خو د مينې محبت علمبردار دے. (۲۵۴ مخ)
- ❖ زمونږ د صبر جنګ دے ، مونږ د وهلو او کنځلو بدل نهٔ اخلو ، مونږ به صبر کوو او ځان به خداے ته سپارو ، مونږ خو خدايي خدمتګار يو ، خداے به زمونږ بدل اخلي ، د خپلو زړونو نه خود غرضي او نفاق لرې کړئ ځکه چې د دې د لاسه برباد شوي يو ، ځان کښې ښهٔ اخلاق پيدا کړئ ولې چې د ښو اخلاقو نه بغير ښوك

ترقي کولے نۀ شي ، بلهٔ اے پښتنو ورونو ! زۀ په دې نۀ پوهېږم چې تاسو ولې د پېرنګيانو نه ويرېږئ ؟ دوي خو ستاسو په شان بنيادم دي، ستاسو په شان يو قوم دے، تاسو خو پرو جنبو او نفاق تباه کړئ ، ويره در کښې پيدا شوې ده ، د چا په زړۀ کښې چې د خدا ے ويره وي نو د هغۀ په زړۀ کښې د بل چا ويره نۀ راځي او د چا نه نۀ ويرېږي او د چا په زړۀ کښې چې د خدا ے ويره نۀ وي هغه د هر چانه ويرېږي نو په دې وجه چې مونږ د حکومت افسر ووينو نو ويرېږو ـ اے ورونو! تاسو په زړۀ کښې د خدا ے ويره پيدا کړئ......

چې کوم کلي کښې جلسه وي نو هلته ډوډۍ چاۍ مۀ کوئ او مۀ پاتې کېږئ او د کلي خلقو ته مې هم ووې چې چا له چاۍ ډوډۍ هم مۀ ورکوئ ـ مونږ غريب قام يو خلقو له چاۍ ډوډۍ نۀ شو ورکولې ..... اے ورونو! تاسو د خدا ے د پاره يوه ورځ روژه نيوې نۀ شئ؟ او کۀ ځوک ډوډۍ درله پخه هم کړي نو تاسو ئې مۀ خورئ نو چې يو ځل خلقو ته ډوډۍ پاتې شي نو بيا به داسې نۀ کوي ـ (۵۵۷-۵۵۸ مخونه)

❖ مونږ خو د خدا ے د پاره لګيا يو د دې قوم خدمت کوو ، کۀ قوم زمونږ ملګرتيا وکړه نو دوي به ازاد شي او کۀ زمونږ مخالفت ئې وکړۀ نو دوي به برباد شي ولې چې





بغېر د قوم د امداد نه مونږ خپل منزل ته رسېدے نۀ شو ـ غم او فکر هغه چا سره وي چې د ځان د پاره کار کوي او ځوک چې د خدا ے د پاره کار کوي هغوي هېڅ غم او فکر نۀ کوي ـ ( ۵۲۱ مخ)

❖ بې شکه چې دروغ د څۀ وخته پورې په خلقو کښې غلط فهمي پيدا کولے شي خو چې رښتيا راشي نو دروغ پاتې کېدے نۀ شي ـ (۵۲۲ مخ)

❖ اے ورونو ! هر څۀ چې تاسو سره کېږي په هغې صبر کوئ، د ازار نه چا بازار موندلے نۀ دے او د ظلم کاسه نسکوره ده ، څومره چې پېرنګيان په مونږ ظلم او زياتے کوي هغه هومره به زر تباه شي او مونږ به ترې خلاص شو ـ ( ۵۲۴ مخ)

❖ څۀ رنګه چې د خدايي خدمتګارۍ تحريک خدايي او بې غرضه تحريک دے نو کله چې خدايي خدمتګارو يو ريښتينے خدايي خدمتګار اسمبلۍ ته کامياب کړے دے ، هغه د دوي پکار راغلے دے او کله چې يو سړے دوي د خپلو غرضونو او تعلقاتو په وجه ودرولے دے نو اول خو هغه ناکامیابه شوے دے او کۀ ځوک کامياب شوے هم دے نو هغه هم د دوي په فائده نۀ دے راغلے بلکې د فائدې په ځا ے جماعت ته نقصان رسولے دے ـ (۵۹۸ مخ)

❖ ما ته بې اتفاقي د مقصد په لاره کښې خنډونه ښکارېدل او هره یوه ډله کښې چې بې اتفاقي پېدا شي نو د کامیابۍ په ځاے ناکامیابه شي. (۲۰۸ مخ)

❖ قومونه خو په تشو خبرو او دعوو ترقي نهٔ شي کولے ، چې په کومو قومونو کښې نېکان پاکان او بې غرضه او د خداے دپاره د خدمت خلق پېدا شي نو هغوي ترقي وکړي . خداے دې په مسلمانانو کښې داسې خلق پېدا کړي. ۲۱۰-۲۱۱مخونه)

❖ افسوس چې په پښتنو کښې دا کمزوري شته چې خپله ژبه هېره کړي ..... د ژبې په هېرېدو خپلو ته سرے پردے شي. (۲۲۸ مخ)

❖ مونږ خدايي خدمتګار د چا نه بدل نهٔ اخلو ، مونږ مظلومان یو، زمونږ بدل خداے پاك اخلي. (۲۳۴ مخ)

❖ د هر یو تحریك انحصار په لیډر وي چې بهادر او هوښیار وي نو د تحریك خلق هم زړه ور او پوهه وي چې لیډر کمزورے او تنګ نظره وي نو د تحریك خلق هم بې زړهٔ او تنګ نظره وي. (۲۳۲ مخ)

❖ غلام قومونه ډېر کمزوري وي او حاکم قوم ته ټینګ نهٔ وي ، حاکم قوم کښې یو قسم کشش وي او محکوم قومونه خود په خود ځان ته راکاږي. دغه وجه وه چې ما به پېرنګیانو سره نهٔ لیدل ، هغوي به زما خلاف





پراپېګنډه کوله چې د دهٔ دپېرنګیانو نه نفرت دے. زهٔ خو خدايي خدمتګار یم او د خداے خدمت خو د خداے د مخلوق خدمت دے او پېرنګیان د خداے مخلوق نهٔ دے ؟ (۲۴۷-۲۴۸ مخونه)

❖ زهٔ د دواوې په دوره وم چې دغلته څهٔ خانان او ملکان راغلل او زما نه ئې تپوس وکړهٔ چې مونږ اورو چې تاسو زمونږ نه جائدادونه اخلئ او غریبانانو له ئې ورکوئ ؟ ما ورته ووئیل چې مونږ له خداے داسې ملك راکړے دے چې د دولتونو او نعمتونو نه ډك دے ، کهٔ مونږ ازاد شو او دا ملك زمونږ شي او مونږ ملا وتړو ، دا ملك اباد کړو نو څوك به غریب پاتې نهٔ شي ، مونږ به ټول خانان شو ، زمونږ دا اراده نهٔ ده چې ستاسو نه جائداد او ملك واخلو ، مونږ خو ستاسو حالت هم ښهٔ کول غواړو او دا اوږي هم مړول غواړو ، کهٔ دا اوږي ماړهٔ شي نو تاسو ته څهٔ تاوان دے؟ کهٔ تاسو د پېرنګیانو ملك ته لاړئ نو هلته نور خلق خو پرېږده د مزدورانو ئې هم بنګلې او موټرونه دي او ستاسو نه تپوس کوم چې ستاسو موټر شته ، بنګله شته؟ کهٔ زمونږ تحریك کامیاب شهٔ نو د ملا حالت به هم ښهٔ شي او د خان او ملك حالت به هم ښهٔ شي، مونږ

دا هر څهٔ چې کوو نو د ځان د پاره ئې نهٔ کوو ، دا د دې قوم د پاره کوو. (۲۲۷-۲۲۸ مخونه)

❖ زهٔ دې قوم ته وايم چې تاسو تر څو بې غرضه ، ديانتدار، ايماندار، په قوم او ملك مئين خلق پيدا کړې نهٔ دې نو نهٔ دا ملك ازادېږي او نهٔ دا قوم. (۲۲۹-۲۷۰ مخونه)

❖ اے خدايي خدمتگارو ورونړو! مونږ خدايي خدمتگار يو ، خدا ے ته د خدمت ضرورت نشته، زمونږ کار د خدا ے د مخلوق خدمت دے، زمونږ کار په چا اعتراضونه او نکته چيني نهٔ ده او دا زمونږ کار نهٔ دے چې په نورو جماعتونو او د هغوي په مشرانو نکته چيني او اعتراض وکړو. زمونږ کار دا دے چې مونږ خپل پروګرام خلقو ته پيش کړو چې مونږ ستاسو د پاره دا غواړو او دا کار يواځې نهٔ کېږي ، دا به هله کېږي چې تاسو راسره ملګري شئ ، ملك هم ستاسو او زمونږ شريك دے، قوم هم شريك دے او کار هم شريك دے. (۲۸۳ مخ)

❖ انسان چې انسان وي نو څومره همدرد وي او چې انسانيت ترې لاړ شي نو بيا څومره بې رحمه شي. (۷۰۸ مخ)





❖ خدا ے په قران کښې وايي چې ما هر قوم ته د هغوي نه يو هادي لېږلے دے ..... زما مذهب رښتيا، مينه محبت او د خدا ے د مخلوق خدمت دے. مذهب همېشه دنيا ته د اخرت او محبت پېغام راوړے دے. د کومو خلقو په زړونو کښې چې د بني نوع انسان د پاره رواداري، مينه، محبت نهٔ وي او د کوم سړي په زړهٔ کښې چې نفرت ، بغض، کينه وي نو داسې سړے د مذهب نه ډېر لرې وي. (۷۲۵-۷۲۶ مخونه)

د زړهٔ په باغ مې ډلۍ وشوه
بويه چې بيا سپرلے راځي سپړي ګلونه

عبدالغفار خان
۱۳مه جولايي، ۱۹۸۱ء

عظمت هما

# د باچا خان متحرک ژوند
# د هغوي د خودنوشت په رڼا کښې

د خودنوشت يو مقصد د يو اتل د ټول ژوند د تعميري کوششونو او جدوجهد هغه قيصې وي چې پکښې د سر لوړۍ او بهادرۍ د کارنامو ذکر شوے وي. دا تعميري جدوجهد د هغه اتل د خپلې نظريې او د ژوند د تېرولو د طور طريقو سره د پوخ کمټمنټ يو سوچه اظهار وي. داسې کمېټډ اتلان د خپلې خاورې د ناموس او د خپل قام د شناخت او د سر لوړۍ د پاره د دنيا د هرې ستونځې مقابلې او مخ نيوي ته بنهٔ په نره هر وخت تکړه او تيار ولاړ وي. په داسې اتلانو کښې بايزيد انصاري (پير روښان)، خوشحال خان ختك، ايمل خان، دريا خان ، احمد شاه ابدالي او دپښتنو د سر لوړۍ فخر ، فخر افغان ، عبدالغفار خان المعروف به باچا خان (۱۸۹۰-۱۹۸۸ء) دے چې خپل ټول ژوند ئې د پښتنو د شناخت ، يو والي او خپله خاوره د سامراجي استبداد د پنجو نه په ازادولو کښې تېر کړے وۀ. هغه د ازادۍ په قيمت پوهه يو زيرك او مدبر سياستدان وۀ. د هغهٔ سياسي شعور دومره تېز او تاند وۀ





چې په ماشوم والي کښې د تاند سماجي شعور له برکته د پښتنو د خدمت جذبه په زړهٔ کښې غزونې وکړه او دا جذبه په باچا خان کښې د هغوي د شپږم جماعت استاذ چې د مشن سکول هېډماسټر وۀ ، ماسټر وګرم ، چې په مينه او اخلاص ئې د خلقو خدمت کوۀ ، له کبله راپېدا شوې وه. باچا خان په خپل کتاب کښې ليکي:

> مسټر وګرم چې به کومه تنخواه اخستله د هغې نه به ئې زمونږ بې وزلو هلکانو ته وظيفې ورکولې.

هغه وړاندې ليکي:

> ما کښې چې د انسانيت ، قوم پرستۍ ، ورورولۍ ، عزيز ولۍ ، وطن دوستۍ او د خداے د مخلوق د خدمت کومه جذبه پيدا شوې وه په هغې کښې زما د دې استاذ وګرم ډېر لاس دے.

او دا هم د ماسټر وګرم په باچا خان د بې لوثه خدماتو اثر وۀ چې هغوي د علم د رڼا له برکته خپل قام ترقي يافته قومونو په صف کښې ودرول غوښتل او د دې د پاره ئې په ۱۹۱۰ء کښې د مولوي عبدالعزيز سره په اتمانزو کښې يوه مدرسه جوړه کړه او دا مدرسه چې سر پرستي ئې حاجي عبدالواحد صاحب د ترنګزو کوله ، په ۱۹۲۱ء کښې د ازاد سکولونو د يو Chain د

خورولو هغه بنیادي تیکه ده چې په پښتنو کښې د سیاسي او سماجي شعور په بېدارولو ، د غلطو رسمونو رواجونو د بېخ کنې سبب هم وګرځېدهٔ. دا نهٔ هېرېدونکي واقعات د باچا خان د ژوند هغه پاخهٔ بنیادونه دي چې پرې د باچا خان د سیاسي او سماجي خدماتو مانۍ ښه مضبوطه ولاړه ده . د هغوي د خودنوشت په امېل کښې دا نه هېرېدونکي واقعات لکه د غمي پرقېږي . د باچا خان په دې خود نوشت کښې په هره دوېمه پېره کښې د پښتنو د تتلي زپلي ژوند د ښېزاره کولو ، د بې ځایه رسمونو رواجونو د مونډ نه د اېستلو، د توهماتو د دنیا نه د سر راوښکلو خبرې لیکلي شوي دي . هغه د خپلې ځوانۍ قیمتي وخت د ملك په مختلفو جېلونو کښې صرف او صرف دې د پاره تېر کړے وهٔ چې پښتنو له خپل نوم، عزت او شناخت وګټي او پېرنګے د خپلې خاورې نه په کډه اچتولو مجبور کړي . په خپله خاوره د خپل اختیار او د پښتنو د سرلوړۍ خبره هغه زوړ روایت دے چې په دې سیمه د مودو نه راروان دے . باچا خان هم د دغه مړني روایت تسلسل دے . هغه باچا خان چې پخپله خو د یو لوے زمیندار نیازبین ځوے دے خو د دغه نیازبین باچا خان په نیازبین زړهٔ کښې د پښتنو د یو والي او سر لوړۍ فکر په غورځنګونو وي او په خود نوشت کښې لیکلے دا خبرې د هغوي د فکر انګازې دي.





مونږ پښتانهٔ د امام حسېن علیه السلام ډېر عزت کوو ځکه چې امام حسېن علیه السلام د حق او جمهوریت د پاره راپاڅېدلے وهٔ او مونږ هم د حق او جمهوریت د پاره راپاڅېدلي یو . هغه هم مظلوم وهٔ ، مونږه هم مظلومان یو ، هغه د جمهوریت حق ګټهٔ او مونږه هم جهموریت ګټو، هغهٔ هم د امن د پاره کار کوهٔ او مونږ هم د امن د پاره کار کوو.

د باچا خان په زړهٔ او ذهن کښې دا سپېځلي افکار او جذبات هسې نه دي راپېدا شوي . د انسان په ذهني جوړښت کښې د هغهٔ د چاپېرچل او د کور د ماحول هم ډېر زیات لاس وي . باچا خان په دې خبره ویاړ کوي چې زما د کور وګړي قام پرست وو . باچا خان لیکي:

زما پلار بهرام خان د نورو خانانو په شان حاکم پرست نهٔ وهٔ او نهٔ ئې د دوي خدمتونه کول . زما د نیکهٔ هم دغه حال وهٔ . کله چې پېرنګیانو د بونېر د نیولو په غرض په بونېر حمله وکړه او د سورکاوۍ غزا وه نور خانان د فرنګي ملګري وو او سیف الله خان د قام پرستۍ ، دا رنګې زما غور نیکهٔ عبېدالله خان بابا ازاد خیال

پېښاوړے مشر وهٔ چې د هغه وخت د حاکم
سلطان محمد خان طلايي د لاسه پانسي شهٔ.

دا ټولې خبرې د باچا خان په زړهٔ او ذهن نقش وې او دې سره سره د پېرنګي په پښتنو د هېڅ بې هېڅه ظلم او ناکړدو سترګو ليدلے حال او بيا په تېره تېره په حجره کښې ناست مېلمنو نه په خوږ اواز کښې د خوشحال خان خټك داسې قسمه شعرونه اورېدل:

خو وانهٔ خلي له غليمه انتقام
مرد نهٔ خوب کا نهٔ خوراك کا نهٔ ارام
چې د ننګ او د ناموس اندوي نهٔ وي
د هغهٔ سړي به نهٔ وي احترام
کهٔ همت او حميت غېرت پکښې وي
تر څښتننه نه بهتر ګڼه غلام

به ضرور د زلمي غفار خان په زړهٔ او ذهن کښې د دشمن نه د کرکې، په ازاده فضا کښې د ساه اخستو ارمان او په خپله خاوره د ننګ کولو جذبه راپاروله.

د باچا خان د کتاب جملې د دغه لمبه لمبه جذبه په غورځنګي اسلوب کښې لکه د سمندري موجونو چپې وهي او چې کله د دغه لمبه لمبه جذبو د عملي کولو وخت راغلے نو باچا خان بيا يواځې نهٔ وهٔ.





میں اکیلا ہی چلا تھا جانب منزل مگر
لوگ ساتھ آتے گئے اور کارواں بنتا گیا

په مصداق د باچا خان سره د هغوي په تعليمي او اصلاحي زيار کښې مولوي عبدالعزيز ، مولوي فضل ربي، فضل محمود مخفي، مولوي تاج محمد او بيا په تېره تېره د حاجي صاحب تورنګزو ملګرتيا او سرپرستي د باچا خان حوصله نوره هم پورته او تانده کړه او دا هم د دغه ملګرو برکت وهٔ چې ډېر زر د ازاد سکولونو او د اصلاح الافاغنه په نوم د يو انجمن تابيا وشوه. د باچا خان کليو په کليو ګرځېدل او په خلقو کښې د تعليمي او سماجي شعور د بېدارولو دا سلسله د سرسيد احمد خان هغه کوششونه دوباره راتازه کول دي کوم چې هغه د خپل قوم د تعليمي تقاضو له مخه د مدرسته العلوم د جوړولو د پاره کړي وو. په دې حواله باچا خان د پښتنو سرسيد احمد خان وهٔ. ځکه چې د تعليمي رڼا د خورولو په مد کښې د دواړو رهبرانو په کوششونو او هلو ځلو کښې يو شان والے ښکاري.
باچا خان وايي چې زهٔ به چرته هم په دوره تلم نو پښتنو به راباندې ډوډۍ خوروله ، ما هغوي ته ووې چې تاسو په ډوډوۍ خومره خرچ کوئ ، دغه نغدې ماله په چنده کښې راکوئ چې په تعليمي مد کښې د قام د بچو په خېر ښېګړه راشي او د

مدرسة العلوم د جوړولو د پاره هم دغه طریقه سر سید احمد خان هم خپله کړې وه ـ مولانا حالی په حیات جاوېد کښې لیکي:

سر سید نے بہادر برکت علی خان کو ایک خط لکھا جس کا خلاصہ یہ تھا کہ آپ سے اور سب دوستوں سے یہ درخواست ہے کہ جو کچھ آپ یا اور احباب میری مہمان داری میں صرف کرنا چاہیں ازراہِ عنایت اس کی لاگت نقد عنایت فرمائیں ۔ میں نے اکثر دوستوں سے اسی طرح دعوت کے بدلے نقد روپیہ لیا ہے اور اس کو کالج کے چندہ میں جمع کر دیا ہے۔

دې سره سره د سر سید احمد خان د تهذیب الاخلاق اجراء او د باچا خان په ۱۹۲۸ء کښې د پښتون رسالې اشاعت مقاصد او اهداف هم یو شان والے لري ـ باچا خان ته معلومه وه چې په دنیا کښې هېڅ قوم بغېر د خپلې ژبې نه ترقي کولې نهٔ شي ځکه هغوي په خود نوشت کښې لیکي:

ما دا اراده وکړه چې ضرور به یوه رساله په پښتو کښې د خپل قوم د پوهولو ، د دنیا د حالاتو نه خبرولو او د خپلې ژبې طرف ته د مائل کولو د پاره جاري کوم ـ





او د باچا خان دې کلکې ارادې په ۱۹۲۸ء کښې عملي شکل واخستهٔ او د ژبې د ترقۍ د پاره د انجمن د سپورې لاندې د سالانه مشاعرو انتظام په ملك کښې د انقلاب د جذبې د پېدا کېدو سبب وګرځېدهٔ او د دغه انقلابي جذبو له کبله د پښتنو په خاوره په سرو جامو کښې ملبوس د خدایي خدمتګارو په نوم یو دروند فوج تیار کړے شهٔ چې ښه په نره ئې د سامراج د ناجائزو پالیسیو غندنه کړې ده او په هر فورم ئې د پښتنو د حق چغه وهلې ده او دا نن چې مونږ د پښتونخوا په نوم د یو ځانګړې شناخت دعوه کوو نو دا د باچا خان د اوږد جدوجهد ثمرات دي ـ

باچا خان د خپل مقناطیسي او اثري شخصیت له کبله په غېرتمندو پښتنو او د برصغیر د سر اپستلي لیډرانو کښې یو شان مقبول او معروف وهٔ ـ ځنګه چې د هغهٔ په تقریر کښې تاثیر وهٔ ، دغه شان د هغهٔ په تحریر کښې هم خوږلت ، سلاست او رواني محسوسېږي ـ د هغهٔ د لیك غېر تصنع انداز او د زړهٔ نه د راوتي خبرو سوچه ادبي اظهار د هغهٔ د خودنوشت ښکاره خصوصیات دي او فطرتاً د هشتنغر په خاوره کښې د ژبې خوږلت ، روان او بهاند انداز اخلې شوے دے او ورسره د هشتنغر د ادیبانو په لیك کښې ځاے په ځاے د متلونو پېوندکاري د ژبې نزاکت او خوږهٔ یو په دوه کړې دي ـ د ژبې په

حواله د باچا خان یو ځانګړے انداز دے ـ د علامه اقبال خبره بات جو دل سے نکلتی ہے اثر رکھتی ہے او د زړهٔ د کومي نه د راوتې خبرو کښې نهٔ څهٔ کوټ او تصنع وي ـ دا خودنوشت د هر قسمه تصنع او رنګ امېزۍ نه پاکه ده ـ څنګه چې د باچا خان شخصیت ایغ نېغ او بې باکه وهٔ ، دغه شان ئې په لیك کښې هم رېښتین توب ، صفایي او بې باکي لیدے شي ـ د باچا خان د بې باکۍ دا انداز وګورئ ؛

> کانګرس خو د پېرنګیانو سره د شپېتو کالو راسې د ازادۍ اخستلو د پاره په جدوجهد لګیا وهٔ ، خو انګرېزانو ورته پوره ازادي څهٔ چې نیمګړې ازادي هم نهٔ ورکوله مګر کله چې پښتانهٔ ورسره په دغه جنګ کښې ملګري شول او پښتنو په قیصه خوانۍ، ټکر، اتمانزو ، کوهاټ، هاتي خېلو او میروس کښې قربانۍ ورکړې او دغه شان زمونږ د قبائلي علاقې غېرتي پښتنو دې پښتنو سره د هندوستان د ازادۍ په لاره کښې غزاګانې وکړې ـ د انګرېزانو توپونو او ټېنکونو ته ئې خپلې سینې ډال کړې او د دوي مخې ته لکه د غر ودرېدل نو





> انګرېزانو هله د هندوستان ازادۍ ته غاړه کېښوده ـ

د باچا خان د ژوند قیصه د سیاسي غرزو پرزو نه ډکه ده ـ ځکه د هغوي د خودنوشت په هره جمله کښې یو جوش او ولوله محسوسېږي او دغه د ولولې د احساس قیصۍ چې څوك هم لولي نو په مړو زړونو کښې به هم یوه نوې ولوله ، جوش او متحرك احساس پېدا کېږي ـ

په دې خود نوشت کښې د هغه ازغنو لارو قیصې هم چیړلے شوي دي چې په هغې د تګ نه پس قام ارومرو د رفعتونو بام سر کولے شي ـ دا خود نوشت د باچا خان د خپل قام سره د مینې اخلاص همدردۍ او د عشق داسې داستان دے چې شروع ئې د پښتنو د سر لوړۍ نه کېږي او اختتام ئې ـــ نه رښتیا ـــــ د پښتنو سره د مینې په دې قیصۍ کښې د اختتام ټکے هډو د سره لیکلے شوے نهٔ دے ـ د باچا خان محبوبا پښتون قام به هم دغسې د سرلوړۍ ژوند تېروي ـ